# کندهار

کندهار مي د بابـــــا په قبـــــاله دی
که پنجشیر دی که واخان دی وطن زما دی
ســــــــرداري يې زما په پچه ده ختلې
له آمو تر مســـــت هلمنده مامن زما دی

عبدالباري جهاني


د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رياست دوې مياشتنۍ خپرونه

دریم کال لومړۍ گڼه (وری ـــ غویی) دریمه دوره ـــ پرله پسې گڼه شپاړسمه ۱۳۸۳ لمریز کال


## کندهار د تاریخ په اوږدو کښې

### څېړنغونډي په وياړ





د لوی استاد علامه عبدالحي حبیبي د شلم تلین په یاد




# قرآني رڼا

واطيعوا الله واطيعوا الرسول واحذروا ج

فان توليتم فاعلموا انما على رسولنا البلغ المبين

**ژباړه** :

او ومنئ تاسي (حکم) د الله او ومنئ تاسي (حکم) د رسول (د الله) او وساتئ تاسي (ځان له مخالفته د دوی) پس که وګرځېدلاست تاسي له احکامو (د دوی) نو پوه سئ چي بېشکه هم دا خبره ده چي پر رسول زموږ (محمد) هم دا رسونه (د پيغام) ده ښکاره (او روښانه په ښه وجه سره.)

**تفسير** :

يعني که د يوه شي ګټي او ضررونه تاسي نسي احاطه کولای نو بيا هم د الله تعالی د احکامو امتثال وکړئ او د الهي قانون له تخلفه ځان وساتئ. او که مو ځانونه ځني ونه ساتل نو زموږ رسول الهي احکام او قوانين تاسي ته په ښکاره ډول او طريقه سره در رسولي دي، د تخلف نتيجې ته تاسي پخپله فکر وکړئ. د هغه ضررونه يقيناً تاسو ته رسېدونکي دي.

**يادونه**

درنو لوستونکو !

د لوی استاد علامه حبيبي (رح) د يادغونډي ليکني د کندهار مجلې په راتلونکي ګڼه کښي لوستلای سی.



# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله


مؤسس : محمد ولي ځلمی

سرپرست چلونکی : عبدالمجید بابی

**کتنپلاوی** :

ډاکټر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، عبدالکریم طالب رحیمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجید بابی

**کمپیوټر چاري** :

مطیع الله روهیال

**بیه** :

هیواد : ۲۰ ـ افغانۍ

پاکستان : ۲۵ ـ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۱۰ امریکایي ډالره

**کلنۍ ګډون** :

هیواد : ۱۲۰ ـ افغانۍ

پاکستان : ۲۰۰ ـ کلداري

نور دباندني هیوادونه : ۸۰ ـ امریکایي ډالره



**پته**

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست

شهیدانو واټ

د کندهار مجلې دفتر

ټلیفون : ۳۰۰۱۴۴۰

ګرځنده : ۰۷۰۳۰۰۰۲۴



**د امتیاز څښتن : د اطلاعات او کلتور ریاست**

دریمه دوره

دریم کال لومړۍ ګڼه ـ پرله پسې شپاړسمه ګڼه

وری ـ غویی (حمل ـ ثور)


## په دې ګڼه کښې

سرلیکنه

# د سبانی واک لپاره ننني غور

د هیواد په کړکېچن کښې د لمړي ځل لپاره د اولسمشر او د هغه تر څنګ د پارلمان لپاره د ټولټاکنې بهیر ته د څه موده پاتې ده ښه نوم لیکنه پیل شوې... ډېر ګومان کیږي چې دا ځل به د مړو په ساه سره پیلیږي. په هره سیمه کښې کوښښ کیږي چې خلکو ته د رایې ورکوني پاڼې پلاس راوړي. او بیا د هغو په کارولو سره خپل برخلیک د خپلې خوښې پر بنسټ وټاکي. او څوک چې یې خوښ وي اولسمشرۍ ته د غوره شووکسانو د ډلې څخه پر یوه لاس کښېږدي

د بېده مرغه په کندهار او کندهار ته ورته سیمو کښې د نوم لیکنې بهیر د همهغه لمړي سره د پېخ مخته تګ سره مخامخ دی. په لمړي پړاو کې د نوم لیکنې د پوهېدنې ځانګو د ډنډي له مخې د خلکو او په ځانګړې توګه د ناپوهو خلکو د پوهېدنې په برخه کښې لکه چې ورته په څغاسته راغښته باندې ځانونه تندي ستړي کړي. په دوهم پړاو کښې چې په ښځو توګه د نوم لیکنې منځګیان پرانستل شوه هغه هم په هغه کچه نه وه چې په بېلا بېلو ګوټونو کښې د بېلابېلو او سپېدونکو او په ځانګړې توګه د ښځو وندې اخیستنې ته سوکلې پکښې نغښتې وي. خو کله چې د څو میاشتو وروسته د هغه چا په پاملرنه سره د دې بهید د بشپړتیا ارزښت ورته څرګند او د پراخې پاملرنې او پرله پسې غوښتنو له مخې دغه منځګیان څه نا څه پراخ او وغځېده

اوس پر خلکو ده چې د دې چارو ارزښت ته د زړه په سترګو وګوري او په ځانګړې توګه هغه څوک چې د دغه بهید په اړه یې د خپلو خلکو په استازیتوب پدغسې غونډو او بیا پدغسې غوښتنو کښې برخه لرله دنده لري څو خپل خلک وپوهوي او چمتو یې کړي چې د نورو خلکو په څېر دوی هم د نوم لیکنې پاڼې په ښځو او نارینه و تر لاسه کړي. او بیا یې د رایې ورکونې پر مهال پخپله خوښه د خپلې خوښې هغه چاته ورکړي چې لږ تر لږه د اوس لپاره د دوی او د دوی د سیمو او بیا د ټول اولس لپاره د منلو وړ وي

که خدای ﷻ مکړه زموږ خلک د رایې ورکونې پاڼې ونلري او د اولسمشر د ټاکنې پر مهال نور د دغه ډول پاڼو لرونکي وي او هغه یې د دمخه څخه لا پلاس راوړي وي. نو که هغوي د تش لاسو خلکو د خوښې پرته چې باندې لاس اېښاوه. تش لاسي به اړ وي چې هغه به ورسره مني حکه تش لاسو پخپله په لوی لاس د هغه واک څخه ځانونه بې برخي کړي کوم چې په هغه سره د اولسمشر د ټاکنې لپاره د نورو سره سیالي وکولای شي

دغه واک یوازې او یوازې په نوم لیکنه سره د رایې په پاڼه (کارت) کښې نغښتی دی. کوښښ دې وشي چې په ښار او چارچاپېره اولسوالیو کښې خلک په هوښیارانه پاملرنه سره د ډېر نږدې راتلونکې لپاره پدغه نوه وړه پاڼه سره خپل واک پلاس راوړي او په دې لاره کښې په لټې سره په لوی لاس ځان بې واکه نکړي او بیا پر هغه وړ مهال خپله ککړې پخپلو لاسونو ونه ټکوي

**په هیواد کښې د ډاډمنې راتلونکې په هیله**

اداره

قاري فضل الحق حقاني ـ کوټه

خپله ژبه هم کلا ده هم بلا ده :

# د قرآن او احادیثو په رڼا کښي

خبره به له دې ځایه پیل کړو چي الله تعالی و انسان ته ډېر نعمتونه ورکړي دي کوم چي انسان همهغه نه شمېرلی سي او نه پر هغو نعمتونو باندي خپله پوره علمي پوهه راوستلای سي، ولي چي شمېرنه د هغو شیانو کیږي چي انسان یې پېژني او یا یې ادراک کولای سي خو د انسان پخپل وجود کښي په لس ګونو داسي نعمتونه سته چي په هغو باندي انسان ناخبره دئ. د همهغه نعمتونو له لړۍ څخه یو لوی نعمت ژبه ده چي الله تعالی په دې یوه ټوټه غوښه کښي هغه طاقت ایښی دئ چي د دنیا د ټولي نړۍ انسانان خپل حاجتونه و یوه او بل ته بیانوي ان تر دې چي علمي دنیا د همدې ژبي پر بنسټ باندي ولاړه ده، او د همدې ژبي په بر کت یو استاد خپل په زرګونو شاګردان او محصلین روزي او دوی ته عملي وده ور کوي.

که یوې خواته وګورو چي یوه ټوټه غوښه کوم چي د انسان په خوله کښي پرته ده په همدې کچه او اندازه سره د نورو حیواناتو د جسم حصه ده، خو هغوی یې د خپل زړه د رازونو او غوښتنو ښکارندویه نه سي ګرځولای. نو به مو د الله تعالی ﷻ پر قدرت کامله او د هغه پر لوی انعام او نعمت باندي نوره هم عقیده ټینګه سي، همدا ژبه ده چي انسان ته یې زده کړه وروښووله، لیک او لوست یې ور زده کړ، همدا ژبه ده چي کله په تدریسي چارو کښي ورڅخه کار اخیستل کیږي خو کله بیا د تقریر او وعظ او نصیحت پر ډګر باندي د دنیا او مافیها ګټي او نقصانونه ښکاره کوي او کله بیا د همدې ژبي په بر کت یو انسان پر نورو انسانانو باندي باچهي کوي.

همدا ژبه ده چي کله قرآن وایي نو زړونو ته نور او ښکلا وربخښي، همدا ژبه ده چي کله بیا د رسول الله ﷺ فرمانونه او که بیا د ډېرو اولیاء الله کرامو واقعات او رښتوني کیسي راته ډالۍ کوي. خو د دې ټولو ښېګڼو سره ـ سره ژبه ډېر مسئولیتونه هم لري. که څه هم نن ورځ موږ د هغې و دې مسئولیتونو ته هیڅ پاملرنه نه ده کړې. زموږ په مقدس آسماني کتاب قرآن مجید او فرقان حمید کښي الله تعالی ﷻ فرمایي "مامن قول الا لدیه رقیب عتید" ژباړه: هیڅ یو خبره او یوه کلمه نسته مګر پر هغې باندي یو محافظ او ساتونکی مقرر دئ. یعنی د خولې څخه چي کومه کلمه راووځي که هغه په اراده سره وي او که بېله ارادې وي، پر هغې باندي الله تعالی ﷻ یوه ملائکه مقرره کړېده. چي هغه دا خبري او کلمات پخپل کتاب کښي ثبت او محفوظوي.

له دې څخه دا څرګنده سوه چي الله تعالی چي څه وخت په ورځ د محشر دا سوال وکړي چي ستا د ژبي څخه دا غلطه خبره، درواغ، غیبت او بهتان صادر سوی دئ، نو که انسان دا عرض وکړي چي هغه خبره خو ما د مسخرو کړې وه، یا هغه خبره ما پخپل قصد او اراده سره نه ده کړې، نو په داسي حیلو او بهانو باندي خلاصون نه سي کېدلای، ولي چي الله تعالی ﷻ د انسان د ژوند ټپرولو لپاره یو قانون، دستور او منشور راولېږلی چي ته به خپل ژوند د همدې لارښوونو او هدایاتو په چوکاټ کښي تېروې، او هغه لارښووني موږ په خپل لاس سره یا پاملرنه ورته ونکړه او یا مو هیري کړې او یا مو د ځان لپاره ضرورت ونه ګڼې نو دا خو بیا زموږ قصور دئ که نه نو په قرآن مجید کښي هیڅ یو داسي لفظ نسته کوم چي دې د انسان د فایدې او ګټي لپاره نه وي.

په یوه حدیث شریف کښي راغلي دي چي یو اصحابي راغلی او نبی کریم ﷺ ته یې عرض وکړ: یا رسول الله ﷺ زموږ په کلي کښي یوه ښځه داسي ده چي ډېر لمونځونه کوي، ډېري روژې نیسي، ډېر خیراتونه کوي خو یو عیب پکښي دئ، هغه دا چي "یوذی جیرانها بلسانها" یاني خپل ګاونډیانو ته تکلیف ورکوي پخپله ژبه سره. غیبت یې کوي او بد او رد ورته وایي، احسانونهورباندي کوي، تهمت ورباندي وایي، نو د دواړو جهانونو سردار ورته وفرمایل: "هی فی النار" چي دا ښځه دوزخي ده. او بیا یې عرض وکړ: یا رسول الله (ص)! زموږ په کلي کښي یوه بله ښځه ده چي هغه خپل فرض لمونځ کوي، او خپلي فرضي روژې نیسي، نه ډېر نفلي لمونځونه کوي، او نه هم ډېري نفلي روژې نیسي او نه هم

خیراتونه کوي. خو یوه ښځینه لري هغه دا چې د خپلو گاونډیانو غیبت نه کوي او ټول گاونډیان د دې د ژبې څخه په امان دي. نو نبي کریم ﷺ وفرمایل "هي في الجنة" دا ښځه جنتي ده. که و دې حدیث ته لږ په ژوره کتنه سره خیر سو، نو هرو مرو به و دې پایلې ته ورسېږو چې ژبه د جنت او دوزخ فیصلې کوي. ولې چې نبي کریم ﷺ د جنت او دوزخ فیصله پر ژبه باندې موقوفه کړه.

په یوه بل حدیث کښې راغلي دي چې "کامل مسلمان هغه دی چې د هغه د ژبې څخه نور مسلمانان په امان کښې وي".

صحابه کرام چې د نبي کریم ﷺ ببله واسطې شاگردان دي عرض یې وکړ چې: یا رسول الله ﷺ! د انسان د نورو اجزاوو په تکلیف او ضرر خو موږ پوهېږو، د مثال په توگه د لاس ضرر دا دی چې څوک دې ناحقه په وواهه، ناحقه دې مال او پیسې ورڅخه واخیستې، ناحقه دې په لاس زخمي کړ، ناحقه دې پر مځکه او ملکیت قبضه وکړه، ظلم دې ورسره وکړ، ناانصافي دې ورسره وکړه، او داسې نور. نو د ژبې نقصان او ضرر څه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل:

"چې د ژبې ضرر دا دی چې د چا غیبت وکړې، پر چا باندې دروغ ووایې، د چا بهتان بیان کړې" نن سبا چې اکثره دښمنۍ، جنگونه، بې ځایه حسدونه او د ننني ژوند څونده بدۍ دي که په رښتیا سره ورته وکتل سي له همدې ژبې څخه زموږ و چاپېریال یا معاشرې ته راپېښ دي. ببله تحقیقه و چاته ښکنځل کول، ببله څه جاج اخستلو د چا غیبت کول او ببله څه څېړنې د هر چا پر خبره باندې غوږ نیول او هغه عملي کول. که وگورو نن زموږ چاپېریال د داسې لس گونو بې ځایه رقابتونو، دښمنانو، خوابدیو ان تر دې چې د لویو لویو عداوتونو یواځنۍ وسیله همدغه بې ځایه خبرې، او بې ځایه غیبتونه او بې ځایه ښکنځل دي. چې اوس یې زموږ چاپېریال د داسې بدبختیو داسې مرکز جوړ سویدی، چې اوس ورڅخه خان ژغورنه راته گرانه تر دې چې غیر ممکن گرځېدلې ده. دا ولې چې د قرآن مجید هغه رښتوني لارښووني مو هیرې کړې چې راته یې د ژبې د ساتلو توصیه وکړه، هغه نبوي ملغلرې مو تر شا وغورځولې چې راته یې د جنت او دوزخ فیصلې پر همدغې ژبې باندې موقوفه کړې.

په یو بل حدیث کښې راغلي دي چې یو صحابي د نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې یا رسول الله ﷺ امان او ساتنه په څه کښې ده؟ چې ځان د دوزخ او د اوره څخه وساتم نو حضور ﷺ وفرمایل "امسک علیک لسانک" چې خپله ژبه وساته او یا په نورو الفاظو کښې داسې راغلي دي "فاخذ بلسانه" چې حضور ﷺ خپله ژبه مبارکه په گوتو ونیول او وې فرمایل که امان او د ځان ساتنه غواړې نو د خپلې ژبې ساتنه وکړه رښتیا هم که نن موږ د احادیثو و دارالشفاء [illegible] ورسو او د خپلو ستونځو حل ورڅخه وغواړو نو هم دغه درملنه به راته وفرمایي "او همدارنگه زموږ د پخوانیو تیرو سوو مشرانو متلونه هم داسې ایاتونو او احادیثو ژباړه او خلاصه وي چې وایي:

**"خپله ژبه هم کلا ده هم بلا ده!"**

## د حضرت محمد (ص) خرقه په کندهار...

راوړني د شکر د اداء کولو په منظور په کال ۱۲۹۸ لمریز کښې پر وطن مین پادشاه اعلیحضرت امان الله شاه غازي له خوا د شاه مردان د زیارت د گنبدې د جوړېدو کار پیل او په کال ۱۲۹۹ سپوږمیز کښې بشپړ سو.

د علي آباد د نامه په اړه داسې ویل کیږي کله چې وزیر شاه ولیخان او د هغه زوی وزیر شیرمحمد خان خپل کاریز ته نژدې کلا او باغ جوړاوه، و دې سیمې ته د ډېر درنښت له کبله هغه یې په علي آباد ونومول، او یو بل روایت چې البته په اسنادو کښې نه دی راغلی. خو د خلکو د ژبو څخه ډېر اورېدل سویدی چې یو اتل پهلوان چې علي احمد نومېده، دلته یې آبادي کړېده، او دا سیمه د هغه په نامه مشهوره ده خو په هر ترتیب هغه څه چې ډېر روښانه او واضح دي هغه دا دي چې نومورې سیمه څه د پاسه ۲۴۰ کلونو را په دې خوا په همدې نامه بلل سوېده

(۱) د کابل د ښار تاریخي دېوالونه تر دغه وخت پورې جوړ، تیار او د کابل په پخوانی ښار باندې راگرځېدلي وه، هغه ځایونه چې به د دغو دېوالو (حصارو) څخه دباندې وه هغه به نې د ښار څخه دباندې او یا د حصار څخه دباندې بلل



د کندهار د تاریخ په باب

# میر معصوم او کندهار

اکاډیمیسن پوهاند رشاد



د میر معصوم او کندهار تر عنوان لاندې

مقاله چې ... در لیږم

د کندهار په مجله کې به یې خپره کړئ. په درناوي

پوهاند رشاد

د میر معصوم بهکري الحسیني تخلص "نامي" دی. د پارسي ژبې ښه شاعر او لیکوال وُ. پر شاعرۍ او لیکوالۍ سربېره ښه خطاط، کتیبه لیکونکی، منشي او مؤرخ هم وُ، په طب کې هم مؤلفات لري. "نامي" د ۹۴۴ ه ق کال د روژې په اوومه د سنده په بهکر کې زېږېدلی دی.

بهکر د سکهر نومي ښار پر برابرۍ د سند په رود کې د یوه ټاپو نوم دی (۱). د "نامي" د زوکړې تاریخ په دې بیت کې راغلی دی:

بود تاریخ تولد، هفتم لیل و دوشنبه از صیام
سال نهصد و چهل از وی زواید چـــاردان

"نامي" د پنځه اویا کالو په عمر ۱۰۱۹ ه ق کال د لوی اختر د میاشتې په شپږمه په بهکر کې مړ او د سنده په سکهر نومي ښار کې پر یوه غونډۍ ښخ دی، د ګور خلی یې له شلو کروهو څخه ښکاري "د دغه خلي ودانۍ چې ۸۴ فوټه جګ دی په ۱۰۰۳ ه ق کال میر معصوم پیل کړې ده.

"جهان نما منار" "نامي" "استه" یې تاریخي ماده ده. د ده د مړینې تاریخ د ده پر شنخته داسې لیکلې دی:

میر معصوم آن مه برج شـرف
آفتاب شرع دین، فخـر زمن
روز جمعه سادس ذوالحجه گشت
عازم جنت به امر ذوالــــمنن
سال فوت شار خرد جستم بگفت
"بوده نامی صاحب ملک سخن" (۲)
(۱۰۱۹)

میر معصوم "نامي" د خپل پلار تر مرګ (۹۹۱ هـ ق) وروسته ګجرات ته ولاړ او هلته د ګجرات د حاکم میر شهاب الدین احمد خان سره نوکر سو په ۹۹۲ هـ ق کال د مغلو خان خانان عبدالرحیم خان د ګجرات د مرکز (احمدآباد) په شاوخوا کې له شاه مظفر ګجراتي سره جنګېده، په دغه جنګ کې میر معصوم د خان خانان په ملګرو کې و. دا جنګ د خان خانان په بري تمام سو. په ۹۹۸ ه ق کال چې نوموړي خان خانان پر سنده او ټهټهه برید کاوه. میرمعصوم بیا ورسره ملګري و په دغه جنګ کې یې ښه توره وکړله دغه جنګ تر ۱۰۰۰ ه ق پورې اوږد سو، پای ته د ټهټهې واکمن میرزا جاني بیګ خان خانان ته تسلیم سو. ورو ورو د میر معصوم شهرت عام سو او د شمالي هندوستان د مغلو پاچا جلال الدین

اکبر (۹۶۳ _ ۱۰۱۴ هـ ق) تر درباره یې نوم ولاړ. نومـوړي جلال الدین اکبر په ۱۰۰۳ هـ ق کال د دوه نیم سوو سپرو منصب ورکړ د جلال الدین اکبر د پاچهۍ پای ته یې منصب د زرو سپرو مشرتوب سو چې زموږ په اوسنۍ عسکري اصطلاح غنډ مشر باله کیږي.

په ۱۰۰۲ هـ ق کال چې عبدالرحیم خان خانان د جلال الدین اکبر مغول له خوا د صفوي پاچهانو څخه د کندهار د نیولو لپاره وگماره سو (۳) میر معصوم بیا د خان خانان ملگری و خان خانان چې قندهار ونیوه د جلال الدین اکبر له خوا د کابل نائب الحکومه شاه بیگ د کندهار په حکومت ونمانځه سو.

په ۱۰۱۲ هـ ق کال میر معصوم د مغول جلال الدین اکبر مغل له خوا د فارس صفوي پاچا لومړي شاه عباس (۹۹۶ _ ۱۰۳۸ هـ ق) دربار ته د ایلچي په توگه ولیږل سو. میر معصوم چې د صفویانو پایتخت قزوین ته ورسېده په دغه وخت کې شاه عباس د ایروان نیولو ته تللی و. (ایروان اوس د ارمنستان پایتخت دی) میر معصوم تبریز تـه ورغی او د خپل پاچا لیک او سوغاتونه یې ور ورسول. شاه عباس میر معصوم ته په درنه سترگه وکتل او له مغولي دربار سره یې د لا ښه ارتباط هیله څرگنده کړه. میر معصوم لـه فارس څخه د راستنېدلو په لار کې اصفهان ته راغی او هلته یې لـه ایرانی شاعرانو حکیم شفایي، محمد رضا فکري او تقي اوحدی سره په مشاعرو کې گډون وکړ.

میر معصوم چې له ایران څخه هندوستان ته راستون سو جلال الدین اکبر ونازاوه. او د زرو سپرو پوري منصب یې ورکړ. د ۱۰۱۴ هـ ق د ځلورمي خور په درېیمه روځ (۱۶ اکتوبر ۱۶۰۵ ع) د شمالي هندوستان پاچا مغول جلال الدین اکبر مړ سو او پر ځای یې زوی نورالدین جهانگیر پاچا سو، د جهانگیر له خوا میر معصوم تـه پـه بهکر کـې د امین الملکۍ دنده وسپارله سوه او دی بهکر ته ولاړ او هلته ومړ.

میر معصوم "نامي" د پارسي ژبې ښه شاعر و، د ده د رباعیاتو بولگې (بیلگې) دا دي:

نامي زگنه روی سیــاه آورده
وزکرده خــود باتو پناه آورده
گویند به عاصیان بود مغفرتت
غفاری تو و من بار گــناه آورده



نامي زغم فراق محزون می گـــشت
در بادیه و کُه، یار مجنون می گشت
خورشید اگر پای نهــادی آنی
سر تا به قدم آبله و خون می گشت



نامي چي شد ارتو تختگاهی کردی
وز فقر زر اندود پنــاهی کردی
خوبی جهان بصــورت آینیه دان
خود گیر تو هم درونــگاهی کرد



خداوند دلی ده شــعله افروز
دروجـــانی ز درد عشق در سوز
به دل ده شعلهٔ آتش گـــدازم
بریزان از مژه اشـــک نیازم
چنـان در درون سینه ســوزم
کـه در روی خرمن هستی سوزم
چنان زان آتشم دل زنده گــردان
که از غیرت بســوزد آب حیوان
دلی ده سر بســر شایسته درد
درونم چون جــراحت خسته درد
دلی کـــو زخم را از هم نداند
متـــاع خوشدلی از غم نداند



در عشق بتان مشق جنون باید کرد
جان را به فراق زبون باید کــرد
چون شیشه تمام پر خون باید شـد
وآنـــگه ز ره دیده برون باید کرد



در جهان در نظر دیده وران مختــصر است
هر که بر بست ازو چشم طمع دیده ور است
تا تو بد عهد در مهر و وفـــا بر بستی
نامي را چشـــم به دیوار و در است

د نامي دا بیت ډېر مشهور دی

چه خوش است انکه زخود روم و تو حال پرسی
بتو شرح حال گـــویم به زبان بی زبانی

نامي د تاریخي مادو په را ایستلو کـې هـم ډېر مهارت درلود. د میر ابوالقاسم د مـرگ تـاریخي مـاده یـې داسـي را ایستلې ده:

شد میر ابوالقاسم نیــک رای
ســوی دار عقبی ز دار فنا
چو نامي طلب کرد تاریــخ او
خرد گفت: "رفتار به داربقا" (۹۹۱)

نامي د پارسي ژبې بشپړ دېوان لري. د دغه دېوان يوه خطي نسخه يې د سنده د نامتو ليکوال حسام الدين راشدي په کتابتون کې خوندي ده. (نامي) پنځه مثنويات او دوې ساقي نامې هم لري د اودهه د کتابتون په فهرست کې دغه مثنويات داسې راپېژندل سوي دي.

۱ معدن الافکار نومې مثنوي د نظامي ګنجوي (۶۰۴ ه ق مړ) د مخزن الاسرار په جواب (؟) کې

۲ اکبرنامه د نظامي ګنجوي د هفت پيکر په بحر کې

۳ پري صورت د نظامي ګنجوي د اسکندر نامې په بحر کې

۴ خمسه متحيره د نظامي ګنجوي د ليلى و مجنون په بحر کې

۵ حسن و ناز نومې مثنوي د مولانا عبدالرحمن جامي (۸۹۸ ه ق مړ) د يوسف و زليخا په بحر کې ويلې دي

په تحفة الکرام کې عليشيرقانع و رايي دا د سسي او پنون قصه ده په خينو فهرستونو کې د دغه مثنوي نوم ناز و نياز ليکلی دی

حسام الدين راشدي له ناز و نياز څخه پرته د نورو څلورو مثنوياتو د ليکنې نېټه ۱۰۰۵ ـ ۱۰۱۳ تر منځ بولي. د تاريخ طاهري په ضميمه ۲۰۶ مخ کې د ناز و نياز د مثنوي د تنظيم کال تر ۱۰۰۲ ه ق پخوا ښوول سوي دي. د اودهه د کتابتون په فهرست کې د دغو پنځو مثنوي ګانو د بيتونو شمېره لس زره بيته ښوول سوې ده

د مير معصوم بل مهم اثر تاريخ سنده دی چې د تاريخ معصومي په نامه هم يادېږي. ختيځ پوه "ريو" پخپل فهرست کې ليکلي دي مير معصوم خپل اثر "تاريخ سنده" په (۱۰۰۸ ه کال کې پای ته ورسوه. خو په تاريخ سنده کې د ۱۰۰۹ کال پېښې کښل سوي دي لکه دا ليکنه: "قلعه بکهر تا اين زمان که سن تسع و الف است همان قلعه موجود است."

د تاريخ سند پارسي متن په ۱۹۳۸ ع کال د ډاکټر عمر بن داود پوتره په مقدمه او تصحيح په بمبئی کې چاپ سوی ده. اردو ژباړه يې اختر رضوي کړېده او تعليقات يې ډاکټر نبي بخش بلوڅ کښلي ده.

په ۱۰۰۸ ه ق کال چې ميرزا عبدالرحيم خان خانان د جلال الدين اکبر په حکم پر سنده بريد وکړ مير معصوم يې ملګری و او د دغه جنګ د سترګو ليدلی حال يې په تاريخ سنده کې ليکلی دی

دوه کتابه مير معصوم په طب کې هم کښلي دي. يو يې "مفردات معصومي" او بل يې "طب نامي" نومېږي. (۴) د مفردات معصومي يوه خطي نسخه د بنګال د ايشاتيک سوسايټۍ په لايبريرۍ کې خوندي ده. مير معصوم ډېر پرهېزګار سړی و. شيخ فريد بهکري په ذخيرة الخوانين کې ليکلي دي، له مير معصوم څخه د تهجد لمونځ نه و قضا سوی، ډېر سخي و. شيخ فريد دا هم زياتوي: مير معصوم خطاط او کتيبه ليکونکی و، او له کتيبه ليکلو سره يې خورا زياته مينه درلوده. د اوسني ارمنستان پايتخت ايروان، نخچوان، تبريز، اصفهان، کندهار، کابل، کشمير، شمالي هندوستان او دکن کې د مير معصوم ليکلې کتيبې سته. مير معصوم چې هر ښار ته ورغلی دی هلته يې يوه يا څو کتيبې يادګار په توګه پرې ايښي دي.

## له کندهار سره د مير معصوم اړيکي

د مير معصوم کورنۍ له ترمذه څخه سبزوار او له سبزواره څخه کندهار ته راغلې ده. د سبزوار په نامه دوه ځايه سته يو د ايران د خراسان د ولايت په لوېديزه برخه کې او بل د افغانستان د فراه او هرات تر منځ پروت دی. زه نه پوهېږم چې د مير معصوم کورنۍ به د کوم سبزوار وي. ميرمعصوم د فتحپور سکري د شاه سليم چشتي د زيارت د لويې دروازې تر څنګ په کتيبه کې کندهار د خپل وطن په توګه داسې بيانوي.

"قائله و کاتبه محمد معصوم نامي بن سيد صفايي الترمذي اصلا و بکري مسکنا و المنسب الى سيد شير قلندر بن بابا حسن ابدال (؟) السبزواري مولدا و القندهاري موطنا و مرقدا."

ډاکټر شپرنګر د اودهه د پاچهانو د کتابتون په فهرست کې د نسب نامه سادات بکهري په نامه يو کتاب ښيي، دی وايي

"په ۶۵۸ ه ق کال يو سيد له قندهاره څخه بهکر ته راغلی محمد نومېده د بهکر د سيدانو نسبي شجره يې د جلال الدين اکبر مغول تر زمانې پورې وليکله." (۵)

په دغه رانقل سوي مطلب کې ماته ۶۵۸ ه کال سهي نه ښکاري ګمان کوم چاپي تېروتنه به وي ځکه مولف د جلال الدين اکبر مغول پاچاهي پورې چې ۹۶۳ څخه پيل سوې او په ۱۰۱۴ ه ق پای ته رسېدلې ده ژوندی و، او له قندهاره د سيد محمد تګ بهکر ته د "ريو" له وينا له مخې د جلال الدين اکبر تر پاچا کېدلو ۲۹۵ کال پخوا پېښ دی. زما خيال دا

دی دا سنه به سهې نه وي. او دغه د قندهاره راغلی سید به سیدمحمد صفایي وي چې د میرمعصوم پلار او میر معصوم "نامي" د سید محمد صفایي زوی د سید مرتضی لمسی دی او د سید شیر قلندر کورنۍ ته یې نسبت کېږي. د سید شیرقلندر زیارت د کندهار د سپېروان په سکېلچه کې دی اوس یې هم ډېر خلک زیارت ته ورځي، د میر معصوم نیکه (سید مرتضی) هم په کندهار کې ښخ دی. شیخ فرید بهکري پخپل کتاب ذخیرة الخوانین د ۱۰۶۰ تر ۱۰۶۱ هـ ق تالیف کې د میر معصوم په باب داسې لیکلي دي

"اصل وطن ایشان (میر معصوم) در دو سه کروهی قندهار است و منصب تولیت مرقد منور بابا شیر قلندر که در قندهار آسوده اند بعضی سادات دیگر بشرکت دارند."

صمصام الدوله شهنواز خان (۱۱۱۱ ـ ۱۱۷۱ ه ق) د مأثر الامرا په درېیم ټوک ۲۷۴ مخ کې لیکلي دي

"د میر معصوم کورنۍ دوه درې پښته په کندهار کې اوسېدله د دوی نیکه سید شیر قلندر په قندهار کې ښخ دی."

د میر معصوم پلار سیدمحمد صفایي تر ۹۴۴ هـ ق کال دمخه له قندهار څخه د سنده بهکر نومي ښار ته تللی دی.

دغه وخت د سند پاچهي د کندهاري شاه حسن ارغون (۹۲۸ ـ ۹۶۲ ه ق) په لاس کې وه، او په بهکر کې ډېر کندهاري ارغونیان میشته وو. سیدمحمد صفایي هم له دوی سره په بهکر کې میشت سو د سنده د سیوستان (سیون) د کهروت په یوه سیده کورنۍ کې یې واده وکړ په ۹۶۱ هـ ق کال چې د میر فاضل کندهاري زوی سلطان محمود د شاه حسین ارغون له خوا د بهکر حاکم سو سیدمحمد صفایي ته یې په ډېره درنه سترګه کتل په ۹۷۷ ه ق کال چې د بهکر شیخ الاسلام شاه قطب الدین هراتي مړ سو د سلطان محمود لخوا سید محمد صفایي د بهکر شیخ الاسلام وټاکه سو

سید صفایي په ۹۹۱ ه ق کال په بکهر کې ومړ او د سکهر پر یوه لوړه غونډۍ خاورو ته وسپارل سو د ده پر شنخته د میر معصوم شعر لیکلی دی چې د سر او پای بیتونه یې دا دي

ماه قریشی سید صفایی
کافراشت فلک لوای نورش
نامی زبرای سال تاریخ
گفت "پر نور باد گورش"

"پر نور باد گورش" د سیدمحمد صفائي د مړیني کال دی. میر معصوم غالباً په ۱۰۰۲ ه ق کال لومړی وار کندهار ته راغلی دی، دی په دغه لښکر کې د میرزا عبدالرحیم خان خانان مل و. میر معصوم دوهم وار په ۱۰۰۴ ه ق کال قندهار ته ولاړ او تر ۱۰۰۷ کاله پورې څلور کاله په کندهار کې و.

په دغه موده کې میر معصوم "نامي" په کندهار کې دغه کتیبې لیکلې دي

## د کندهار په چهل زینه کې

مغول بابر چې د ۹۲۸ ه ق کال د کوچني اختر په دېرلسمه له شاه بېګ ارغون څخه کندهار ونیوه. د کندهار د سرپوزې د غره په شمالي څوکه کې یې د غره په یوه پاڼ کې یو دالان جوړ کړ چې د سیمې خلک یې چهل زینه او میر معصوم یې "پیش طاق" بولي. میر معصوم په تاریخ سندهه کې لیکلي دي. د دغه دالان په کتیبو کې د بابر د زامنو میرزا کامران، میرزا عسکري او میرزا هندال نومونه راغلي وه، خو د بابر د زوی همایون او د همایون د زوی جلال الدین اکبر نومونه نه وو. ځکه نو ما د بهکر څخه سنګتراشان راوغوښتل او څلور کاله مو په دغه دالان کې کار وکړ. د همایون او جلال الدین اکبر نومونه مې په نوې کتیبه کې ولیکل او د جلال الدین اکبر نیولي ملکونه چې له بنګاله تر لاهوره (۸) او له کابله او غزنې څخه تر دکنه پورې پراته وو په دغه کتیبه کې ولیکل

## د قیتول د غره شېرکتیبې

قیتول د سرپوزې د غره هغه برخه ده چې د زاړه ښار جنوبي دروازه (چې د ماشور دروازه بلل کېدله) په خوله کې یې پرته ده. د قیتول د سورۍ ډېرې لاندې د غره په لمن کې د سید حسین زنجیرپا زیارت څخه لوړ د دوو خونو دېوالونه ولاړ دي په لوړه خونه کې د غره پر یوه ډېره داسې لیکلي دي

"قال امیر المؤمنین
جل من لایموت (منه) ذکر الموت جلاء القلب
لیس الشیب فی العمر
بقیة العمر لاقیمة لها
لا غم للقانع

دنیا هست مثال رنگ و بویی
کس را نرسد خبر ازویی
تو بی اثری ز درد چون کوه
وز درد منم چو کوه انبوه

بتاریخ روز عید قربان تعمیر این بناء نمود سیادت پنا میر محمدمعصوم نامی بن سید صفایی ترمذی سنه ۱۰۰۵"

قال عیسی علیه السلام "الدنیا قنطرة فاعبرواها ولا تعمروا ها"

المدح ذبح الدنیا ساعة فاجعلها طاعة

(قيل) غفلة الاحياء اكثر ام حسرة الاموات
(قيل) عجبت لمن جرا من مجاري البول كيف يتكبر
(قيل) الادب يستر قبح النسب

در عهد بندگان حضرت خلافت پناهی شهنشاهی ظل الهی جلال الدين محمد اکبر پادشاه غازی خلدالله ملکه ابدا ـ ايالت قندهار بنواب شجاعت شعار شاه بيک کابل مفوض بود اينجانب تعمير نموده شد

نامی بکشا چشم بصيرت در يـــــاب
بنياد زمانه هـــمچو نقش ست بر آب
باتو گــــويم که حاصل دنيا چيست
بيداری يک زمان و باقی همه خواب

فی ۱۰۰۶ سمت تحرير يافت

پر دوهمه کتيبه کښلي دي

قال علی ... طاعة الله غنيمة
(منه) خير المال ما انفق فی سبيل الله
(منه) غنم من سلم
(منه) عقيب کل يوم ليل
(منه) رسول الموت ولادة

"نامی" زفلک دوش دلم کـرد سوال
کز رفته و آينده بين کن احــــــوال
گفتا چه خبر از رفته گان نيست اثر
آينده چو رفته دان چه می پرسی حال؟

بفرموده سيادت پناه مير معصوم بن سيد صفايی ابا و بن سيد شير قلندر بن سيد حسين زنجيرپا رحمهم الله

درېيمه کتيبه

جام از می عيش تلخ کام افتاده
اين مجلس باد هنا تمام افتاده
..........
بنگر ز حريفان می و جام افتاده

قائله و کاتبه محمدمعصوم بن سيد صفايی بن سيد مرتضی بن مير ... بن مير سيد علی بن سيد مير عماد امام الدين بن سيد مير بزرگ ... الترمذی اصلاً و البهکری موطناً ...

څلورمه کتيبه :

په څلورمه کتيبه کې دغې هديرې ته د سيد حسين زنجيرپا د تابوت د رانقلولو پېښه داسې کښلې ده، تر دغه دمخه سيدحسين زنجيرپا د بابا صاحب (حسن ابدال) په هديره کې ښخ وُ ، خدمت حقايق پناه معارف دستگاه مير سيد حسين زنجيرپا صاحب کشف و کرامات بود. و نسبت ارادت و خواهر زادگی به قطب الاقطاب بابا حسن ابدال داشته مرقد معطر ايشان در جوار بابا بوده. بمرور ايام مقبره ايشان ... ممر خلايق واقع شد گويا اين امر منادی شده بنا بر ان در آن مکان با اين منزل انتقال واقع شد

پنځمه کتيبه

په پنځمه کتيبه کې د سيد حسن زنجيرپا نسبي شجره ليکلې ده په دې ډول

اين مزار فايض الانوار مير سيد حسين زنجيرپا بن سيد عين الدين ابن مير شمس الدين ابن سيد علاوالدين ابن سيد حسن ابن سيد حسين ابن سيد رضايی بن سيد محمد بن سيداحمد ابن سيد علی بن سيد حسين بن سيد محمد بن سيد هارون سيد محمد بن سيد جعفر بن سيد محمد بن سيداحمد بن سيد موسی کاظم بن امام جعفر صادق بن امام زين العابدين بن امام حسين بن حضرت علی

د سيد حسين زنجيرپا زيارت د دغو خونو تقريبا سل ګامه کښته پروت دی، اوس يې هم خلک زيارت ته ورځي.

د سيد حسين زنجيرپا د زيارت شمالي خواته تقريبا پنځوس ګامه له زيارته ليرې يو کوچنی زوړ ماجت (مسجد) هم سته د محراب کښته نيمی برخه يې له يوې درې خخه جوړ سوې ده پر دغه ډبره هم څه ليکنې سته ګمان کېږي چې دغه ماجت او محراب به هم د مير معصوم له ودانيو څخه وي

## د سيد شير قلندر (شيخ قلندر) د زيارت کتيبې

د سيد شير قلندر زيارت د کندهار ښار څخه لوېديزې خواته لس کروه ليرې د سپيروان په سکبلچه کې پروت دی.

د دغه زيارت لوېديځ ته د ارغنداو رود بهيږي، زيارت د سکبلچ د غره په جنوبي لمن کې واقع دی په دغه غره کې د مير معصوم دوې کتيبې د غره پر پاڼ ليکلې دي، وايي بوه يې له لوسته وتلې ده (؟) خو پر بله يې دا مضمون کښلی دی :

درين آرامـــــگاه، بی ره و رو
اگر مردی منه دل يــــــکسر مو
ازين منزل که ياران در رحيل اند
ترا آن جمله در رفتن وکــيل اند
تو اگــر آسمان منزل نشين است
هم آخر جای تو زير زمـــين است
بيا "نامی" بـــــکار خود بگرييم
زمـــــــانی بر مزار خود بگرييم

## د ښوراو کتيبه

مير معصوم چي په ۱۰۱۲ هـ ق کال د کندهار له لاري فارس ته په سفارت تلی د ګريش (ګريشک) او دلارام تر منځ يې د ښوراو په غره کي يوه کتيبه ليکلې او په هغه کي يې د ليکني کال ۱۰۱۲ کښلی دی.

## د شاه آغا د زيارت کتيبه

ما اوريدلي دي چي د خاکريز د شاه آغا (شاه مسعود) په زيارت کي هم د ميرمعصوم يوه کتيبه سته خو ما (رشاد) نه ده ليدلې، البته د زوی (مير بزرګ) په نامه يې کتيبه سته، دغه کتيبه چي د مرمر پر يوه شاخه (تخته سنګ) ليکلې ده د زيارت د دروازې په خوله کي د يوې ټيټي دالانچې پر ديوال نصب ده مير بزرګ د نورالدين جهانګير مغول (۱۰۱۴ ـ ۱۰۳۸ هـ ق) په پاچهي کي خو کاله د کندهار بخشي و. په دغه وخت مير بزرګ د شاه مسعود په زيارت کي يوه ودانی جوړه کړله مير بزرګ له کندهاره دکن ته تبديل سو، او له هغه ځايه بهکر ته ولاړ او هلته ومړ، د مير بزرګ مرګ د ذخيرة الخوانين په وينا ۱۰۴۴ ـ او د مآثر الامرا په وينا په ۱۰۴۲ هـ ق کال پيښ دی. مير بزرګ په سکهر کي ښخ دی، ښه شاعر هم و. په سکهر کي د مير معصوم د هديرې په دروازه کي د ده دا بيتونه ليکلي دي:

مير معصوم آن رفيع القدر
که ازو کار دين به آئين است
کرد طرح منارتا گويند
کين پر يادگار ديرين است
پير چرخ از براى تاريخش
طاق عرش برين بگفت اين است
۱۰۰۳ = ۶۱ + ۹۴۲

د دغه خلي تاداو مير معصوم په ۱۰۰۳ هـ ق کال ايښی و مير بزرګ په ۱۰۲۶ هـ ق پسي بشپړ کړ، مير بزرګ او پلار يې د دغه خلي څنګ ته ښخ دي.

### پاي ليکونه

۱ د سنده رود پښتانه اباسين بولي، د بهکر کلا شاه بيګ ارغون جوړه کړېده، شاه بيګ په ۹۲۸ هـ ق کال په بهکر کي مړ سوی دی، يو کال د بهکر (سنده) واکمن و.

۲ هغه څېړونکي چي د دغي تاريخي مادې لومړۍ کلمه "بود" وايي ۱۰۱۴ له دغه تاريخي مادې څخه راباسي، خو دا د تامل وړ خبره ده ځکه چي دی په (د ۱۰۱۵ هـ ق) کال د جهانګير مغول (۱۰۱۴ ـ ۱۰۳۸ هـ ق) له خوا د بهکر امين الملک ټاکل سوی دي. د نشتر عشق په تذکره او تذکرة مورخين ۶۱ مخ کي د مير معصوم د مرګ کال ۱۰۱۵ هـ ق ليکلي دي وګوری د نشتر عشق د تذکرې خطي نسخه د رامپور په رضا لايبريري کي د ذخيرة الخوانين لومړی ټوک، په ۲۰۴ مخ کي کښلي دي. په ۱۰۱۵ هـ ق کال چي بهکر ته راغی دلته مړ سو

۳ وګوری: تاريخ فرشته (د ۱۰۲۳ هـ ق تاليف) ـ خو غلام حسين طباطبايي پخپل تاريخ سيرالمتاخرين (د ۱۱۹۵ هـ ق تاليف کي د دغه بريد کال ۱۰۰۱ هـ ق ليکلی دی

۴ وګوری: د ريو فهرست او د روز روشن تذکره

۵ وګ: شاهان اودهه کي کتب خانې د محمد اکرام چغتايي ژباړه ۶۴ مخ د کراچي چاپ ۱۹۷۳ ع

۶ شاه حسين ارغون د شاه بيګ (۹۲۸ هـ ق مړ) زوی او د ذوالنون ارغون (۹۱۳ هـ ق مړ) لمسی و. شاه بيګ چي په ۹۲۸ هـ ق کال مغول بابر له کندهاره پسي واخيست، ده پر سند بريد وکړ او د سند واکمن سو

۷ مير فاضل په کندهار کي د ذوالنون ارغون له امراو څخه و

۸ لاهری د بحيرة عرب پر غاړه د کراچي ختيځ ته پرته وه

ـ مير فاضل په ( هـ ق) کال د بابا صاحب (حسن ابدال) د ګور شنخته جوړه کړېده او پر هغې شنختي يې خپل نوم کښلی دی

**پښتو**

پښتو نياو (انصاف) دي.
مساوات په پښتو کښي دی.
په پښتو کښي هغه رينښتيني ډيموکراسي ده چي تګي، چل ول، افراط او تفريط پکښي نسته.
ظلم او استبداد په پښتو ورکيږي.
ظالم په پښتو خربشوی کيږي.
د مستبدانو سر د پښتو په تيره ټکول کيږي.

**پښتون بابا محمدګل مومند**



# نوروز

ډاکټر عبدالرازق "پالوال"

سړي چې له فلسفي زاويې څخه ورته وګوري، نو هېښنې پاتېږي، چې پر مادي عللو او عواملو سربېره يو راز و بل راز نفسي او روحياني عوامل هم زموږ په ژوندانه او ثقافت کښې تطورات او تحولات پېښوي. لاندې په دغې ليکنې کښې د يوه دغسې اووښتون څرګندونه کيږي.

**د نوروز وربښتيا:**

د دغې لنډې ليکنې موضوع نوروز دئ، چې په اوس کښې د نوي کال لومړۍ ورځ په دغه نامه سره پېژندله کيږي خو د نامه د فقه اللغی له مخې څخه "نوروز" مانا "نوى نمر" د "روز" لغت په اوس کښې د "روځ" مانا لري. خو په اصالت کښې يې "نمر" مانا لرله دا چې "روز" يا "روځ" د نمر مانا لري، نو و ورځې ته به څه ويل کېده؟

يوازې د مقايسوي بشايېدنې په توګه سره داسې ويل کېدلای سي چې څنګه چې په ګاونډيو ژبو هندي ـ اردو کښې و ورځې ته "دين" ويل کيږي، نو ښايي چې په پښتو کښې دې هم دغه لغت د ورځې له پاره استعمالېدئ، خو دا چې "دين" دوې ماناوې پيدا کړې وي، يوه عقيده او عبادت، او بله ورځ نو وړاندنۍ مانا يې دوهمه مانا لاندې کړې ده څکه چې پر تېولنې باندې اسلامي ثقافت چاپېر سوئ وُ نو دين يوازې د عقيدې او عبادت په مانا سره پاتې سوئ دئ ورځې چې د رب النوع نمر مانا لرله، او په اسلام کښې نې دغه ارزښت بايللى وُ، د ورځې په مانا نې د دين (روځې) ځاى نيولئ دئ. څوک به وايي چې نو د "نمر" نوم وُ، بيا نو "روځ" ولې دغه مانا ورکوله؟ د "نمر" لغت اصلاً دغه مانا نه لرله په کومې مانا سره چې نې نن موږ کاروو.

اوس چې پښه داسې ده، نو نوروز دغه اوسنى نوروز نه وُ، کله چې شپه او ورځ سره برابرېږي، او بيا ورځ مخ پر اوږدېدو سي په پخوا کښې نوروز، چې د نوي نمر په مانا سره وُ، د مرغومې (جدي) لومړنۍ ورځ وه د خلکو له عقيدې سره سم نمر درې ورځې د ژمي په کور کښې تېرولې. او په څلرمه ورځ چې د مرغومې لومړنۍ ورځ سي، بيرته خپله تګ لاره غبرګوي نو په ترمخنۍ ورځ نې د کال لنډه ترينه ورځ او شپه نې د کال اوږده ترينه شپه و پاى ته رسېدلې، او په سبا نې ورځ مخ پر اوږدېدو او شپه ئې مخ پر لنډېدو کېدلې. دغه نمر چې به د ژمي له کوره څخه راوتووئ نوى نمر وُ يا دئ، او نو ځکه هم "نوروز" يا "نوى نمر" (روز نو) باله سوئ دئ، يا باله کېدئ.

څوک به وايي چې نو نوى نمر له کومه کېدئ؟ د دوى د عقيدې له مخې څخه په کال کښې يو نوى نمر راختئ. رحمان بابا چې د خپل زمان ښه مطالعه نې لرله، د هرې ورځې نمر بل نوى نمر بللئ دئ:

دا چې هره ورځ راخيژي بېل بېل نمر دئ
هر چې پرېوزي هغه نه سي ختاى بيـــا !

تر اسلام دمخه نمر د خلکو په عقايدو کښې ډېر ستر ځاى لاره، څکه چې د دوى په ژوندانه کښې نې ځاى تر دغه لا هم ستر وُ دوى چې به هر راز په پوهېدلې ول، ول به، او نو څکه نې د نمر نمانځنه (عبادت) د يوه رب النوع په توګه سره کوله دا لا څه چې د دوى د ژوندانه ډېرې چارې له نمر سره تړلې وې، او هغه لا هم هغه نورې چې طبيعي اړه نې نه ورسره لرله چې د څينو څرګندونه نې په لاندې ډول سره کيږي.

**نوروز اختر:**

يو زمان کله چې پرڅوانو (پښتنو) لويه شاهنشاهي لرله، د نوروز قدر او درناوى د کال تر بلې هرې ورځې پکښې ډېر وُ.

دوی په دغه ورځ مجلل جشن او هم يې رسمي او ديني مراسم لرل تاسي يې دغه سترتوب او تقدس له دې څخه اټکلولای سئ چي کله به شاد گېنتي پيښه سوه. ځای کښېنستونکي شاه به مياشتي ـ مياشتي انتظار کاوه څو د نوروز ورځ ور رسېدلې وي بيا به دغه د نوروز په ورځ دغه نوی شاد په رسميانو سره پر اورنگ يا پر تخت باندي کښېناوه کېدی، او تاج پوښي يې کېدله دوی د دغې ورځي او مراسمو له پاره لس ـ يوولس مياشتي هم انتظار يوست او هم خوړ تر دغه کم نو د نوروز ورځ د پخوانيو پښتنو تر ټولو لوی اختر و. او هم يې د شگون بختوره ورځ وه

دا چي موږ نن په ژبه کښي لوی اختر او کوچيني اختر لرو، دلالت پر دې کوي چي پښتنو تر اسلام دمخه هم دوې يا ډيري داسي د خوښۍ ورځي لرلې. دغه که به د مرغومي نوروز او د حمل نوروز و، يا کېدای سي چي دوی نوري داسي د خوښۍ ورځي دي وې دوه والی يې څکه تثبيت سوی دی چي په اسلام کښي د خوښۍ دوې ورځي سته يوه عيدالفطر او بله عيدالضحاء پښتنو دغه مبارکي ورځي د خپلو خوښيو په نامه سره اخترونه نومولي دي دغه د لوی اختر او کوچيني اختر اداوي يې خپلي دي ـ عربي او فارسي نومونه يې ترجمه کړي نه دي

د نوروز د جشن له پاره ښخښو د خوني له دېوالو او تيرانو څخه دودان جارو کول بيای ې دغه په سپيني خاوري سره خړوبول کله چي به دغه وچ سول. نو يې د ناجو. سبز. وښتي او نورو زرغونپاڼو څانگي او ترکې د خوني په تيرانو او دېوالو کښي نجتلې په دغو سره يې هم خوني ښايسته کولې او هم به يې بل افسانوي مفهوم لاره. دوی به اووه راز غلې داني پخولې دغه عبارت و له غنم. جواري (ذورت). لوبيا. مشونگ. نخود. باغلي. او ماش څخه دغه به يې تره غوني پاخه کړل، او د شپې به يې تر کولک لاندي د خوني په منځ کښي ايښوول دوی داسي عقيده لرله چي په شپه کښي خواجه خضر راځي او له کولکه څخه د دوی پر خواړو باندي برکت ايږدي په گانده (سبا) چي به يوه او بل کور ته د مبارکۍ له پاره ورتلل، له دغو پخو خواړو څخه به يې په هر کور کښي اوز گولې اخيستلې

خلکو داسي عقيده لرله چي د نمر مور، مورينه ربة النوع سپيندارمذ، په دغه د نوروز په ورځ و چاته په دغه کال کښي د زوی زېږوني برخه ورکوي، څکه نو په دغه مناسبت سره به و دې ته هم په دغه ورځ د هغه چا لخوا څخه چي په تېر کال کښي به يې زوی زوکړی و قرباني کېدلې. څنگه چي په سل

کښي نهه نيوي خلکت کرهڼوال، او کرهڼگر ول. نو ژمی د بېکاری موسم و، ورهڼگر پکښي بې کم و کسه ول. څکه نو د نوروز جشن يوه ورځ يا درې ورځي نه و. بل لا شل ورځي يې دوام کاوه. په وروستنيو درو شپو ورځو کښي د جشن اوج و، په شلمه ورځ يې نوروز و، په ترمخنۍ شپه به يې د شر قواوي پېريان، روي، دېبان. او اهرمنان (شيطانان) له وطنه څخه ايستل سوي ول. او د خير فرښتې به پاته وې په دغه ورځ به جشن خورا په جم و جوش کښي و (١)

د يونانيانو نوروز د ميزان پر اوله باندي و د آريايانو نوروز د مرغومي پر اوله باندي و د پخوانيو جشنونه به له درو ورځو څخه تر شلو ورځو پوري دوام کاوه. نو د مرغومي لومړنۍ ورځ يې يو ټاپی و. او د وړي لومړنۍ ورځ يې بل ټاپی دی ډېر داسي ښايېږي چي د اسلامه سره سم چي يې داسي دود و بل به يې د کفر او اسلام تر منځ هم داسي توپير کړی وي. څکه نو اوس نوروز نوی نمر نه دی. بل لا د کال نوې ورځ ده

گورئ! هوښ مو وي چي په معتدلو سيمو کښي د نوروز په ورځ د رسم يا حال په توگه يوې کول، د پسرلي له لومړنۍ نېټې سره اړه نه لري. خو د مرغومي له لومړنۍ نېټې سره يې لري، څکه چي مځکې هغه وخت کرلي کېږي. نه په پسرلي کښي د کب په مياشت کښي څه دود پلاوي حسيل ځني رېبل کېږي خو د هندوکش په لوړو درو کښي چيري چي هوا ډېره سړه دد. د حمل د لومړنۍ نېټې سره سم يا يې په شاوخوا کښي مځکې کرلي کېږي دغسي موسمي توپير يې د خوشحال له دې پسې بيته څخه څرگندېږي

نور بڼغونه د نوروز په وخت غوړېږي
په اهرک غوړېده د کابل باغ

## د نوروز زوال

ولي په وروستيو کښي پښتنو د نوروز قدر او ارزښت له لاسه ورکړی دی! دوی نو نه د دغې ورځي مراسم لري. او نه يې څه درناوی ساتي يو عامل يې دا هم کېدای سي چي نهه نيوی سلنه پښتانه سنيان دي څنگه چي د نوروز درناوی د شيعه گانو له خوا څخه په ټبارزي ډول سره کېږي، نو ښايي چي له همدې اسيته څخه به پښتنو ايله ورکړې وي

صفويانو پر سهيل او لوېديځ افغانستان، او بالخصوص کندهار باندي څه دوې پېړۍ حکومت کړی دی اهل تشيع و خپلو مذهبي مراسمو ته دباندنی ټبارز ورکوي، ښايي دغو دباندنيو ټبارزاتو به پښتانه داسي گروهولي ول چي نوروز يوازي په اهل تشيع پوري اړه لري نو څکه به دوی لاس ځني اخستی و

حکومت چې نه یو و نه بل و د نوروز و جشن ته ئې د مېلې په راز دوام ورکړی وُ. حکومت به د نوروز په ورځ کښې دباندې و یوې کروندې ته مېله وایستله. هورې به والي یا ښاروال په یوه جوړه غویو سره چې زنګولې او زومبکان به ئې ور په غاړه کړې ول، اوزګامه یوې وکړه نور غوایي او پسونه چې زومبکان او زنګولې به ئې په غاړه ول. هم و مېلې ته وروستلي ول و هغه ښه ساتل سوي غوایي او مړۍ ته به ئې لا انعامونه هم ورکړل په یاد مې نه دي چې دغه انعام به و یوه غوایي ته وُ. که اول. دوهم او دریم ته؟ و غوایي ته ئې باید د غوایي (ثور) د میاشتې پر اوله انعام ورکړی وای. و مړۍ ته ئې باید د نوروز په ورځ انعامونه ورکړي وای. ځکه چې دغه د وری (حمل) میاشت وي ځنګه چې زموږ کلتور لا تر اوسه پوري هم د نارینه وُ کلتور دی، نو و مېلې ته غواوي او مېږې نه وروستلي کېدلې، او نه هم انعامونه ورکول کېدل که څه هم غوایي او مړونه دوی ورزېږول او شیدې، مستې، کوچې، او پوڅه هم دغو غواوو او مېږو ورکول. و خرو ته ئې انعامونه هیڅ نه ورکول. که څه هم مولانا محمد شریف حبیبي دا په زغرده سره ویلي دي چې هر کله که په افغانستان کښې مجسمې جوړېدلې، نو لومړی باید د خره مجسمه جوړه سي ځکه چې و افغانستان ته هیڅا تر خره ډېر کار کړی نه دی.

## نوروزي مېلې په بابا ولي کښې

د باباولي مېلې به د کب (حوت) د میاشتې په سر یا نیمایي کښې لا پیل سوي وې. دغه مېلې هره د جمعې ورځ کېدلې. هغه زمان (د ۱۴ پېړۍ په دیرشمو کښې) لا بسونه نه ول. لارې به له ښاره څخه تر باباولي پورې سړي په یوه افغاني بېوۍ له هلکانو څخه به ئې اولسکیزه یا نیمکه اخسته. هورې په باباولي کښې به تچیرونه وهل سوي ول. په تچیر کښې دننه به موزیک وُ او غزلې به ویلې کېدلې، لوبه بازي چې هورې تر سره کېدله هغه غېږ ایستنه وه، او خلک هم ډېر د غېږ ایستنې له پاره ورتلل. زانګووې او څرخونه د کوچنیانو له پاره ول، نو تر دې وروسته که د نوروز جشن نیوه کېدی، مرکز به ئې باباولي وي لکه پخوا چې هم وُ

داسې ایسي لکه دغه باباولي چې به یو لوی شاه تېر سوی وي، او د شاهي، شاهي ښار دی ئې هم د اراکوزیا (اراخوسیا) دغه ځای وُ. ځکه چې پر ځنګ غونډۍ باندې یې د شاه په نامه سره "شاه حسین" ښخ دی، بل دا چې له دفاعي پلوه څخه دغه ځای په سیمه کښې تر بل هر ځای خوندي موقعیت لري، یوې خواته ئې د ارغند سیند دی، او و نورو خواوو ته یې غرونه دي. ارغند رود له باباولي سره نږدې و غره ته څرمه بهېږي، او بیا تر خواجه ملک لړ لوړ و غره ته څرمه بهېږي. لکه پر دې سر چې ئې بابا ولي پروت دی. پر هغه سر ئې خواجه ملک پروت دی، چې نوم ئې د شاه مانا لري هورې هم یوازې خواجه ملک ښخ نه دی. بل لا نور قبرونه هم ورسره سته ښایي چې دغه به هم د جنګ د میدان هدیره وي د زاړه ښار په کتیبه کښې شاه حسین د باباولي خوريی بللی او څه نور افسانوي بیان لري. د خلکو افسانه ئې بل راز ده. دوی وایي چې بابا ولي خو نو ولي وُ، او شاه حسین ئې مرید وُ چې د خپل پیر په خوله نې نه وکړل دوی دواړه یو وخت د پنجوایي و شمشېر غار ته ورننوتلي ول. ښایي د نمانځنې لپاره، څو هورې ئې د څلویښتې خلوت (اعتکاف) تېرې کړې وي، هورې په غار کښې د قارون مارون خزانه وه. او د سرو زرو خښتې پرتې وې. دوی چې بېرته له غاړه څخه وتل، نو بابا ولي و خپل صادق مرید ته و ویل هوښ کوه ! چې له دغې خزانې څخه څه نه درسره واخلې، خو شاه حسین د شیطان په خوله وکړه، او د خپل پیر په خوله نه، نو ئې د خپل پیر په غلا یوه د سرو زرو خښته ورسره ترونښولې وه. د خزانې د سمڅې په وره کښې د تورو څرخ په څرخ وُ، باباولي ترې تېر سو خو شاه حسین چې پر ورغلی سر ئې غوځ وړېږې کړ شاه حسین خپل پرې کړی سر په لاس کښې ورسره واخستی. بابا ولي تر مخه او شاه حسین تر شا په پسې وُ دوی چې و اوسني ځای ته ورسېدل، یوه لاروي هلک په زوره ږغ کړه ار. ! خلکو ! و هغه سړي ته ګورئ چې خپل سر ئې په لاس کښې ورسره اخستی دی او پر لارې روان دی. بابا ولي چې تر شا ورته وکتل، ورته ئې و ویل "ولي ؟" مانا ولي دې دغه خښته غلا کړېده؟ شاه حسین هورې پر هغه ځای باندې غوځار سو، او هورې ئې پسې ښخ کړ، او بابا ولي تر دغه وروسته باباولي سو ځکه چې تر مخه ئې ځان ښکاره کړی نه وُ. او یوازې بابا وُ

شاه حسین چیرې د لارې په اوږدو کښې ښخ نه دی. دی د یوې لوړې غونډۍ پر سر باندې ښخ دی، څوک غل د غونډۍ پر سر نه ښخوي. بابا ولي بیا د بلې غونډۍ یا پوزې پر سر باندې ښخ دی. شېخ متی هم د کلات د لویې غونډۍ پر سر باندې ښخ دی. او حسن ابدال بیا و اسلام آباد ته نږدې پر یوې لوړې غونډۍ باندې ښخ کړه سوی دی. دوی هم د خپلې ټولنې سرغنه او هم ستانه کسان ول. ولیان او پیران پر داسې ځای باندې ښخ وي چې دوی و خلکو ته او خلک و دوی ته ور نږدې وي. هغه شاهان دي چې خانون پر لوړو غونډیو باندې ښخوي څو د دښمن او ناکس سړي د پښتو دوړه ئې پر قبر باندې لوېدلې نه وي. نو د غونډۍ پر سر

باندي د شاه حسین ښخوه نه هم خود دلالت پر دې باندي کوي چې دی یو عادي شخص نه وُ روحاني شخص هم نه وُ، ځکه چې د "شاه" لقب لري، دغسي هم بابا ولي او د ده له څنگه سره نور ښخ کسان به هم یا شتمن ول، یا د نوړي رتبې کسان که به د ده د کورنۍ غړي نه ول، داسي ایسي لکه شاه حسین چې دي تر باباولي دمخه پادشاهي کړې وي. ولي که وروسته وای، نو باید له ده سره نژدې ښخ وای. په بل صورت کښي به بابا ولي او شاه حسین په دوو قبیلو یا توکومونو پوري اړه لرله چې ژېنه به نې نه سره گډېدله لکه څنگه چې وگړي داسي عقیده لري او هم داسي وایي

ما دا نسبتا اوږد بیان د دې له پاره راووړ څو موږ بل کله د نوروز ورځي جشن هم د بابا ولي پر تخت باندي تر سره کړي وي څو هغه یاد نې تازه کړی وي چې د پرڅوانو (پښتنو) شاهان به دغه ورځ پر تخت باندي کښېنستل، او هم نې په دغه ورځ تاج یوښي کېدله

په افغانستان کښي د ښځو تر آزادۍ (۱۳۴۰) دمخه مولوی صمد اخوند د صوفیانو دښت په خپل جامع مسجد کښي د نوروز جنډۍ پورته کوله. په دغه ورځ به اوژ غوایان حلالېدل او ورغلو کسانو ته به غرمه مهال ورجې او غوښي خواړه ورکول کېدل. څنگه چې د صوفیانو دښت نور پاته نه دی، نو تر دې وروسته دي هغه جنډۍ په باباولي کښي پورته کیږي چې د پسرلي مېلو دودیزه اوبجه ده، او ښځمني هم د دغي ورځي مېله په باباولي کښي کوي. بل ښه والی نې لا دا هم دی چې له ښار او شاوخوا کلو څخه به سوونه څه چې زرونه ـ زرونه کسان به برخه یکښي واخلي. لا بله ښېگڼه نې دا هم ده چې د ارغند ناوې د باغستان غوړېدلي شگوفې او د دوی په منځ کښي د ارغند راده بهېدنه به نور رنگ و خوند ورکړی وي چې په افغانستان کښي نې جیرې ساري نه لیده کیږي

د شالمار مېلي به دوبي کښي تر لوو وروسته کېدلې څو هغه هم تر باباولي تخت کښته په باغو کښي وې. و دغو مېلو ته د وچوبۍ کلیوال ورتلل چې میاشت به نې په باغو کښي اوسېدنه کوله. دغه مېلې تر هغو پوري وې څو چې مېوو ارزښت پیدا کړ یا لا لاري او لارۍ پیدا سوې چې مېوې نې تر چمنه پوري رسولي وای. تر مخه پر خرو وړلي کېدلې چې څه په جوړه نه وه

ډېر دمخه تر هغه چې په افغانستان کښي ښځو ته آزادي ورکړه سوې وي، د کندهار ښځمنو خپله نوروزي مېله د وري د میاشتي په لومړۍ چهارشنبې په بابا ولي کښي تر سره کوله. دا هغه وخت وُ چې لارۍ پیدا سوې او لاري جوړي سوي وې. دوی به دېگ او نور کچکلیان ورسره وړل، خواړه به نې پخول، دریې به یې وهلې، بدلي به یې ویلې، او اتڼونه به یې کول. د کندهار ښار خورا ډېرو ښځمنو په دغه نوروزي مېله کښي برخه اخسته. دغه نوروزي مېله د دوی خپل ایجاد وُ. حکومت لاس نه یکښي لاره. حکومت نه دوی منع کولې او نه نې تشویق کولې. تر اړو دوړ دمخه د پښتنو خوی او اخلاق داسي ول چې د ښځو په چارو نې کار نه لاره. څو څوک په نابلدتیا سره یا کوم تر اهل څوک وي، نو د ارغند ناوې حکومت خپل ساتنوالان گمارل چې څوک نارینه د ښځمنو د مېلې و اوبجي ته ورغلي نه وي. بله کله، لنډ یا په خندې، به ښځمني بیا هم دغسي مېلې کوي. نو لکه پخوا چې یوه ورځ د ښځمنو له پاره وه او نوري د نارینه وُ له پاره وې، تر دې وروسته دي نې هم ترتیب لړ تر لړه داسي وي لکه وُ چې

د دې له پاره چې د ښځمنو نوروزي مېلې نور هم رنگ و بوی موندلی وي، باید د ښووېخونو نجوني تیار کړي پروگرامونه ولري. پر صحنې باندي دراماتیکي پیښي ښکاره کي، د کسرت سپورتي بازي وکي. اتڼونه وکي څو په کال کښي یوه ورځ نې له ژوندانه څخه خوند اخستی وي. دوی باید څارندویاني نجوني ولري څو و ښځمنو ته نې لار ښوونه کړې وي. له دوی سره نې د اړتیا په وخت کښي مرستي کړي وي، کوچنیان نې له ژورو اوبو او خطرناکه ځایو څخه شړلي وي

له یوې خوا څخه د نوروز په جشن نیوه نه کښي څه باندي شل کاله وقفه راغلې ده. بل دا ورپسې د طالبانو رژیم هم د نوروز د جشن مخالف وُ. دوی دغه کار یو غیر اسلامي عمل باله. او نو ځکه باید هم منع کړه سوی وای. دا چې اوس په نوروز کښي نه د نمر یا بل څه عبادت کیږي. بل لا یوه د ښادۍ او خوښۍ ورځ ده. نو له اسلامه سره څه تضاد نه لري. په اسلام کښي هم داسي احکام نسته چې څوک دي د ښادیو او خوشیو ورځي نه لري. اوس چې عقیدوي واقعیت له دغه راژه دی، بیا نو په اسلام کښي ولي د نوروز په اړونده ضدیت وده او خبرښت موندلی دی؟ له همدغه ضدیته څخه په خلکو کښي د نوروز د مراسمو دود او جال یا لا هم فهم او احساس نور مړه دی.

پوښتنه د اده چې نو ولي او څنگه داسي پېښه سوې ده؟ ځکه چې په اسلام کښي نې صریح ممانعت نه لیده کیږي. د دغي پوښتني په جواب کښي زه یو ښاییده نه وړاندي کوم. او بیا به وگورو چې ښایوله کېدلای سي که نه؟

ښايېدنه داسې ده : هاله چې صفويانو پر کندهار باندې تسلط او حاکميت لاره، نو د نوروز رسمي مراسم هم د دوی له خوا څخه تر سره کېدل. څنگه چې د پښتنو سنيانو او صفوي شيعه گانو تر منځ مذهبي تضاد سته والی لاره، څکه نو هغه څه چې صفويانو کول، پښتنو له هغو کارو څخه پرهېز کاوه، په دغه مخالفت کښې ئې نوروز هم قرباني سوئ وُ، او تر اوسه پورې ئې هم دئ، او ښايي بيا خپل پخوانی برم پيدا نه کړای سي. مگر موقع ورته مساعده کړه سوې وي، د صفويانو استبداد دغه مذهبي تضاد ډېر کړئ او تنفر ته ئې رسولئ وُ.

يوه ښايوه نه داسې ده چې نوروز په افغاني ټولنه کښې ښه وياړمن نوم لاره، نو خلکو به پر خپل هغه زوی باندې چې په دغه ورځ به زېږېدلئ وُ د نوروزي، نوروزخان نوم ايښاوه، لکه د اختر د ورځي پر زوکړې چې د اخترمحمد او اخترجان نومونه ږدي. د نوروز نوم و ماته د نجونو يوه په زړه پورېه رغا را په يادوي. دوی له بلې نجلۍ څخه داسې غاو کوي

"بوچه زمبر بوچه، خدای دي ووهه نوروزه !
دا بوچه راڅخه بوزه"

کله چې يوه ورځ د خلکو په ذهنيت کښې نېکمرغه او بختوره نه گڼله کېږي، نو دوی خپل زامن هم د هغې ورځې په نامه سره نه نوموي. دا چې موږ د نوروز په نامه نوروزيان لرلي دي، خود د دغې ورځې پر تبرک باندې دلالت کوي. د دغه فهم په منني سره نوره دا ښايولی سوې ده چې يو زمان نوروز په پښتنو کښې د نېکمرغی او ښادۍ ورځ وه. که به څوک لا دغه نه راسره مني نو دا پسې ښايوه نه دي ئې هم ولولي. بله ښايوه نه ئې داسې ده : چې پرختيځي پښتيانا باندې سنيانو مغولو تسلط لاره. څکه نو پښتنو له دوی سره پر مذهبي کړو ـ وړو باندې څه تضاد نه لاره، که به څه هم له مغولو سره سياسي مخالفت موجود وُ، او دغه هم د نوروز پر دود او چال باندې د مخالفت عامل گرځېدای نه سوای. دا څکه چې مغولو پخپله نه نوروز لاره او نه ئې و دغه ته ورته مراسم لرل. څکه نو په ختيځه پښتيانا کښې عوامو او خواصو د نوروز جشن نيولی دئ ښله دې څخه چې حکومت او رسمياتو لاس پکښې لرلی وي دغه منظره به ئې د خوشحال په اشعارو کښې وگورو

بر بر رايشه نوروزه دل افروزه !
ستا په وخت مي آسوده شي سترگي پوزه (٣)
په راتله ورلره ډېره خوښي راوړي
په خوشحال باندې دي قدر دي نوروزه !

د نوروز له فيضه پوټې خالي نه دي
فيض ئې رسي هم تر سپاندي هم تر څوزه

که چيرې نوروز په پښتني ټولنه کښې ثقافتي ځای نه لرلای، چا به ئې نه د مياشتي او نه د ورځې حساب نيولی وای. هغه زمان جنتري هم نه وې، او حساب ډېر پر ووړميزو (سپوږميزو) مياشتو باندې کېدئ. دا څکه چې يو خو ووړمه د مياشتې دوران څرگندوي، بل لا اسلامي ټول رسوم له ووړميزې مياشتې او کاله سره تړلي دي، ټول مذهبي ټاپې ووړميز دي. نو په يوه کليوالي ټولنه کښې دا ډېره گرانه ده څو د لمريزو مياشتو حساب ئې نيولئ او پاللئ وي. دا چې د خوشحال په کورنۍ کښې دغه کار کېدئ، نو ئې مانا د اده چې دوی له لمريز حساب سره هم ټول ټاپې په ياد لرل چې نوروز يې يو وو :

زر اته پنځوس کلونه د هجرت وُ
د نوروز په دوولسم چي دا گفتار شي

خوشحال

لکه د اختر په ورځ د نوروز په ورځ هم خلکو، لويانو او کوچنيانو، ښځمنو او نارينه وُ ، نوي کالي اغوستل، او دغه ښايي د نېک شگون په نيامت د دغه واقعيت څرک د خوشحال په دې پسې بيت کښې منعکس سويدي :

نن مي بيا په نظر کښېوته مهوشه
تر لباس يې شرمنده اهل نوروزيې

ما د دغې ليکني په ترڅ کښې د رحمان بابا په دېوان کښې په يوه څغلند نظر سره په نوروزو پسې وکتل، خو پر پښې نه سوم. که نه گانه ده په خپلو اشعارو کښې د نوروز يادونه کړې نه وي، نو د نوروز ضد خيالات په خينو مذهبي اشخاصو کښې تر ختيځه پورې رسېدلي او خپرښت ئې موندلئ وُ، هم نن او هم په پخوا کښې. دا چې د رحمان بابا په اشعارو کښې ادبيات سته او په ادبياتو کښې هم ميگوني شونډي سته، نو بيا نوروز ولې بايد نه وي؟ دا څکه چې نوروز له مذهبيت او د مذهبي ټولني له روحيې سره اړه لرله.

د خوشحال نيکه او د ده د نمسي، کاظم شيدا، له دوو بيته څخه، چې زما په محدودو اخستنو کښې راسره سته، داسي ښکارېږي چې دوی آن د نوروز جشن لا هم نيوئ. نو مانا دا چې دغه د اختر غوندې د خوښيو او ښاديو ورځ وه، دوی په دغه اړوند داسي ويلي دي :

سل جشنه نوروزه تر هغه ساعت ځاريږه
هر چي دلداده عاشق يار لره وردرومي

خوشحال

څو داکېږ مو دل افروز وي
پکښې جشن د نوروز وي
کاظم شیدا

د زمان او مکان له شرایطو سره سم به "کاخ" د کلاوهلي کور یا مانۍ په مانا سره اخسته کېدئ. شیدا وایي چي په دې خپل کور کښې مو زړه هاله روښانه کېدای او غوړېدای سي چي د نوروز جشن پکښې نیوه سوئ وي. دغه څرګندونه نې دلالت پر دې باندې کوي چي د نوروز جشن نیوه نه یوه کورنۍ پېښه وه. مانا هري کورنۍ خاصه د نوروز جشن نیوئ ځه پر داسي عمومي ټولنیزي یادوني باندي په داسي پېښ سوئ یم. ښایي چي نور چیري به نې نوري یادوني هم وي. د خوشحال خان دغه پسې بیتونه نې هم دغسي ښوونه کوي

که اختر دئ. که نوروز دئ. خو هم دا دئ
مخ په مخ چي د خپل یار فـــــراغت کښېني
رایشه مطربه د نوروز سرودآغـــــــاز کړه
ښې نغمې دلسوزي په رباب په نې و چنګ کړه
په نوروز کښې دا غزل واخله مـــــــطربه
په آواز به دي بلبلي شي ســـــــــکتي
راغله اختر او نوروز همغـــــــــــــــږي
مین خندا کا. چغـــــــــــــــنه ژاړي
چي دیدن نې له ګـــــــــلریو سره کیږي
مې دي خوري. نوروز دي کا. بهار نې نت دئ
خوشحال

د نوروز له برکته څخه د حمید هم خپله زړخنه هیله تر سره کیږي چي دی نې هوا او هوس داسي یادوي

هغه دم شاه جهان شم په دماغ کښې
چي له ښکلیو سره کښېنم په نوروز

وړاندنی بیت دلالت پر دې باندي کوي چي اختر او نوروز نې یو شانې د خوښۍ ورځي بللي دي نو خود به نوروز هم د اختر غوندي یوه ټولنیزه د خوښۍ ورځ وه. اوس هغه شایېدنه ښایوئي سوې ده چي په لوېدیځه پښتیانا کښې د نوروز جشن نه نیونه د صفوي دولت د استبداد له اسیته څخه مذهبي تضاد زیات سوئ او د نوروز جشن نې قرباني سوئ دئ دا خکه، څنګه چي په ختیځي پښتیانا کښې د صفویانو تسلط او استبداد و، نو د نوروز جشن نیوني تر ډېره پوري دوام کړئ دئ چي د خوشحال او شیدا بیتونه نې شواهد او ښکارندویه دي

کله چي د خلکو خواري او غمونه لړ سي، او پر ځای نې ښادي او خوښي ډیري سي، نوروز پخپله ژوندی کیږي. نهال به له خاورو څخه وده وومومي. زرغون به سي، او غوټۍ به نې لکه ګل داسي وغوړیږي

---

(۱) د نوروز په اړوند تاریخي معلومات له پخوانیو تاریخي لیکنو څخه د کافرستان، اوسنی نورستان او بدخشان له مشاهداتو او ګروېږونو څخه، چي د پخواني پښتني کلتور بقایاء دي، سکښتلي سره اچول سوي دي

(۲) د لاریون په توګه سره هر راز دباندنی تبارزات کول، که به سیاسي وي یا مذهبي، باید له مقاماتو څخه نې اجازه واخسته سي حکومت باید د هغه زمان او مکان د خلکو له نبض، روحیې، او حساسیتونو څخه اګاه وي چي و لاریون او تبارزاتو ته اجازه ورکي که نه. د دغه کار له پاره باید په اساسي قانون کښې یوه ماده زیاته کړه سي او د هغې په مطابق عمل وکړه سي په اساسي قانون کښې و یوې بلې مادې ته هم اړتیا سته. که به څه هم له موضوع سره اړه نه لري. خو یادونه نې لازمي ده هغه دا چي اساسي قانون باید د حکومت د مامورینو رسمي لباس د ښوونخونو د شاګردانو یونیفورم وټاکي آیا د انګریزانو او روسانو ملي لباس باید زموږ رسمي لباس وي که لکه دوی موږ خپل ملي لباس هم خپل رسمي لباس وګرځوو لکه پاکستان چي دغه کار کړیدئ! که نه په ملي آئین کښې دغسي ټاکنه وي او نه هم د دولت رئیس دغسي فرمان صادر کړئ وي. د هر راز لباس حکومتي عملي کول به یو غیر قانوني کار وي. ملي ثقافتي اندېښنه دا ده، چي په نهایت کښې به افغانان نور خپل ملي لباس نه لري

(۳) د خوشحال له دغه بیته څخه داسي ښکاریږي لکه دوه سوه کاله تر مخه چي په اکوړه کښې هم ژمی سوړ و چي اوس نه دئ. دوې پېړۍ څو ډېر اوږد عمر دئ، د پنځوسو کالو په شاوخوا کښې، کله چي زه په کندهار کښې متعلم وم، په ژمي په لښتیو کښې داسي پنډ، کروړ او ټینګ یخی نیوء کېدئ چي هلکانو به ښویندوکې پر کاوه. د قوس پر پنځلس به په کوټو کښې بخارۍ ایښوولي کېدلې، خو تر دغه تاریخ دمخه به هم د یخ، نه سړو، له لاسه توان نه کېدئ. هر کال پېښه داسي وه. دغه دوه نیم کاله چي زه پسله ډیرو کلونو څخه و کندهار ته راغلئ یم، ما په ژمي په کندهار کښې یخی لیدلئ نه دئ

د کابل پوهنتون پخوانی استاد
پوهاند غلام جیلاني عارض

# ناوړه پېښې

درنو حاضرینو، خوېندو او ښاغلو مېلمنو!

مونږ چې همدا اوس د میرویس نیکه او ابدالي احمدشاه بابا په درانه ټاټوبي کښې اوسو د دې لرغوني او باستاني ښار د مېړنیو خلکو د لوړ هر کلي څخه مونږ ته همغه لوړي او با ارزښته خاطرې راتر ستر کو کیږي

دغه تاریخي ښار د یوې لویې او د برمه ډکي امپراطورۍ مرکز و، چې د هند په نیمه وچه لوېدیځو سیمو او هم په سهیل او شمال کښې یې د هغې ځیلوا که او مېړنی جنډه په رېبدو وه چې د لمړي ځل لپاره ډیموکراسي هم په همدغه ویاړلي ښار کندهار کښې رامنځته سوې هغه هم په داسې حال کښې چې لوېدیځي نړۍ د فیوډالیزم په لمبو کښې لاس او پښې وهلې و ډیموکراسي ته په کتنه سره د احمدشاه بابا په کابینه کښې د هغه د پراخي امپراطورۍ په کوټ کوټ کښې د هر ټبر او قبیلې څخه وتلو او استعداد لرونکو مشرانو د ټوپیر پرته برخه لرله، چې د افغان او افغانیت تر نامه لاندې یې د ملي یو والي او وتلي یوالنیز امتزاج ښکارندوبي کوله

درنو ورونو او خویندو!

ستاسو په لرغوني ښار کندهار کښې همدغه ننني ورکشاپ او سیمینار (د ۱۳۸۳ ل کال د وري د ۲۴ مې څخه تر ۲۶ مې پورې) چې د طبیعي پېښو سره او د هغو څخه د زېږنده زیانونو د مخنیوي په وړاندي د درېدني په اړه ځانګړي وړاندیزونه او طرحې لري چې په ترڅ کښې به یې څرګنده سي چې څه ډول زمونږ خلک کولای سي د توان امکان تر کچې د طبیعي پېښو و زیانونو او اغېزو ته کمښت ورکړي

ناوړه پېښې او د هغو زیانونه یا په طبیعي ډول سره وي او یا د بشر په اراده سره رامنځته کیږي چې په لاندي ډول یې یادونه کوم:

الف طبیعي عوامل

ب بشري پېښې

په طبیعي عواملو کښې لاندنیو پېښو تل د اوسېدونو په برخه کښې ستونزې راولاړې کړیدي

۱ زلزله
۲ سېلاب
۳ طوفانونه او ټینګ بادونه
۴ د مځکې ښوئیدنه
۵ وچکالي
۶ د ریګونو د لویو برخو خوځښت
۷ د واورو د لویو ټوټو کوچېدنه
۸ د آهکي مځکو کښېنستنه
۹ د رودونو د تګ لوري تغیر او یا په هغه کښې میاندرونو (کږ و پېچ) رامنځته کېده

په بشري پېښو کښې هم د لاندي فکتورونو نومونه یادولای سو

۱ پرله پسې او یا لنډې جګړې او په هغو کښې کسات اخیستنه
۲ د نفوسو ډېرښت
۳ په جبري ډول او یا پخپله خوښه کډوالي
۴ د ښاري پروژو نه پلې کېدل
۵ تښتونه او اختتاف
۶ قاچاق او نور

الف د طبیعي عواملو څخه د اوسېدني ستونزې

د زلزلې ناوړه اغیزې

زلزله یو نابېره دردناکه طبیعي غم دی چې انسانان د مړیني په خوله کښې ورکوي او په یکړ او ټولیزه توګه د انساني ټولني د له منځه تللو سبب ګرځي تر اوسه د جیوفزیک د پوهانو لخوا د زلزلې وړاندوینه نده سوې یوازې په ځنګلونو کښې د زلزلې د پېښېدو څخه دوې درې دقیقې دمخه ځاروي په بیړه سره دې لو راو هغه لور ته په چیغو او نارو سره ځغلي، دا چې افغانستان یو غرنی هیواد دی

تکتونیکي ډوله زلزلې دلته ډیرې پیښېږي او اورغورځونکي زلزلې لا تر اوسه ندي رامنځته سوي

یوازې په مخکنیو کلونو کښې په سرپل کښې سوې زلزلې غوندې ډوله خوځښت په لږه کچه سره رامنځته کړې و خو تکتونیکي زلزلې چې په افغانستان کښې پیښیږي آریز لامل یې دا دی چې د پامیر او واخان په ساحه کښې یو تکتونیکي پلېټ د هند د پلېټ په نوم د سایبریا د پلیټ سره په تماس کښې وي چې د توازن ډېره کوچنۍ ورانې په هند او سایبریا کښې د سختو لړزو لامل ګرزي او هغه لدې امله چې د ګنګا، سند او براهماپوترا رودونه هر کال په خانګړې توګه د پرله پسې اورښتونو پر تاپې د همالیا او هندوکش د غرونو د لږه ځخه رسوبي توکي د هند سمندر ته د خانونو سره وړي، او همدارنګه د آمو، سیر دریا، او بې، نیسي، لینا او هوانګهو رودونه هم په میلونونو ټنه رسوبي توکي سیند ته (مصب) ته رسوي. دغه بهید بیا د برابرۍ ورانې په آسیا کښې منځ ته راوړي او له همدې امله د همالیا غر هر کال یو سانتي متر لوړوالي پیدا کوي او سره له هغه تکتونیکي زلزلې د واخان او پامیر ځخه په لږ او ډېر سختوالي هر لور ته غځیږي

دغه موضوع د عربستان د تاپو وزمې، قفقاز، البرز او زاګروس د غرونو په پلېټ کښې ناوړه اغیزې پر خان پرېږدي له همدې امله د کرمان د بم په ښار کښې وروستۍ زلزلې چې د ۲۰۰۳ زېږدیز کال د ډسمبر پر ۲۷ مه نېټه د لوط د دښتې د سهیل لوېدیځ او د زاګروس د غرونو د سهیل ختیځي لمنې تر منځ پرته ساحه کښې وي، زیاتره تر ۳۰۰۰۰ مړي یې رامنځته کړه. د تکتونیکي زلزلو خانګړتیا د اده چې د تکتونیکي ماتوالي په اوږدو کښې رامنځته کیږي ا ودا ډول ماتوالي د زلزلو په وړاندې ډېر زیان منونکي وي

د کرمان د بم د ښار په ساحه کښې یو اوږد او لوی ماتوالی چې شمال لوېدیځ او سهیل ختیځ لوري لري په محسوسه توګه تر سترګو کیږي او یو بل اوږد او لوی ماتوالی هم د هغه په لوېدیځ کښې د هغه تر څنګ په موازي توګه شتون لري. چې د (ګاوخانه) په نوم د اوبو ډنډ یې هم په اوږدوالي کښې پروت دی آن چې پرله پسې او اوږده ماتوالي د زاګروس په غرو کښې تر آذربایجان او قفقاز پورې هم وجود لري

یو بل عامل چې د زیاتو خاني او مالي مړینو او زیانونو لامل ګرزېدلی دا دی چې د بم ښار د هغو رنګي رسوباتو د تراو په ساحه کښې پروت دی چې د بادو د چلېدو ځخه منځ ته راغلي دي او د رودونو د رسوباتو سره یو خای دواړه د زاګروس د غرونو په لړۍ کښې د کرکنډو (صخرو) د پوړو (طبقو) دپاسه د غره په لمنه کښې لوېدلي دي چې دلته د جیولوجیکي جوړښت مطابقت د نېستي ځخه د زلزلې په وړاندې یې د دربدني توان لږ سوی دی او پایله یې دا سوې چې دغې زلزلې د ودانیو په سلو کښې پنځه اتیا برخې د نړېدنې، لوېدنې او زیاتې ورانۍ سره مخ کړې

په دغه ناوړه پېښه کښې ۲۷۰۰ تنه افغان کډوالو هم خپل ژوند د لاسه ورکړ چې د مصئونیت د نشته والي او دلته د کار نه موندلو له امله لا تر اوسه هلته میشته وه چې د اللهي مقدراتو په وړاندې یې هلته د کډوالۍ په چاپېریال کښې د هیواده لیرې ونسوای کولای خانونه وژغوري

دغه ډول تکتونیکي ماتوالي په افغانستان کښې هم په زیاته کچه سته لکه:

۱ په البرز کښې د مارمل ماتوالي چې د مزار شریف د سهیل ځخه تیریږي
۲ د خواهان ماتوالي د تخار په شمال ختیځ کښې
۳ د خیجوند ماتوالي د بدخشان په شمالي څنډو کښې
۴ د اندارب، میرزا او اوولنګ ماتوالي
۵ د تیربند تر کسان ماتوالي
۶ د لارون ماتوالي د بدخشان په شمال لوېدیځ کښې
۷ د شکاري درې ماتوالي
۸ بدخشاني ماتوالي د بدخشان په شمالي څنډو کښې
۹ د هریرود ماتوالي
۱۰ د قرغنو ماتوالي د هریرود په سهیلي اوږدوالي کښې
۱۱ د چوید ماتوالي د بدخشان په شمالي څنډو کښې
۱۲ د شغنان ماتوالي
۱۳ د زیباک ماتوالي
۱۴ د تاشکو پروک ماتوالي په واخان کښې
۱۵ د کنړ ماتوالي
۱۶ د سروبي ماتوالي
۱۷ د اونۍ ماتوالي د پغمان په غره کښې
۱۸ د هلمند ماتوالي
۱۹ د چمن ماتوالي
۲۰ د مقر ماتوالي
۲۱ د جوګاني ماتوالي د بدخشان په شمال کښې

پر همدې بنسټ په افغانستان کښې د زلزلو زیانمن ترینه ساحه د همدغو ماتوالو په خط السیر کښې پرته ده چې

زلزلو د پیښو څخه ډکه او تر ټولو ډارونکې سیمه بیا د افغانستان شمال لوېدیځه برخه ده چې يو همدغسې د لوی غم (فاجعې) ښاخ يې د بدخشان څخه پيل د جلال آباد ، ګردېز، غزنۍ شرن او بيا تر چمن او همدا ډول بل ښاخ يې د چخچران ، هريرود او هرات پورې غځېدلی دی. چې تر څنګ يې د کندوز، بغلان، ايبکو، مزارشريف او ميمنې ځينې برخې هم زيان منونکي ګڼل کيږي، او د کېږ کېښ په اوږدو کښې ليده سوې چې پدغو ساحو کښې ناوړه زلزلې چې د زيانو مړينو او ورانيو لامل ګرځېدلي دي رامنځته سويدي.

د دغو ټکو د يادوني څخه زما موخه دا ده چې د جيولوجي او د ښار جوړولو خانګړي پوهان دنده لري چې دغسې سيمې خانګړي او په نښه کړي او د پخپل سر کورونو او هغه کورونو چې د زلزلې په وړاندې د درېدنې توان ونلري د مخنيوي لپاره د زلزلو د زيانونو او ورانيو د ښودلو سره يو ځای خلک پوه کړي او وړ به لا داو ی چې په دغسې ساحو کښې هر ډول کورونه که دولتي وي او يا د خلکو وي د همدغسې خانګړو پوهانو په سلا او مشوره سره جوړ سي د دې پرته به لکه د کرمان د بم د ښار، د چمن، کوټې او يا پغمان او کابل د زلزلو د پيښو سره مخامخ کيږي، چې په وروستې پړاوونو کښې به يې د زيانونو څخه رامنځته سوی تشتيا هم د توانه وتلې وي.

دلته د افغانستان د تيرو زلزلو او د هغه څخه د رامنځته سوو زيانونو د څو بيلګو يادونه کوم څو د کور او ښار جوړولو خانګړي پوهان، د جيالوجي پوهان او نور اړوندان هغه ته زياته پاملرنه وکړي، په تيرو څو کلونو کښې چې ډېر هم ليرې نه وه په افغانستان کښې درې ډيرې ډارونکي او ناوړې زلزلې پيښې سويدي چې په درو واړو کښې د سيمې د مسئولينو پاملرنه لدې امله لږ وه چې د زلزلې څخه د ژغورنې کومه دفاعي لاره يې نه وه سنجولې او نه يې د تدارکاتي لارو او اعاشې لپاره خانګړې انځۍ (پلان) درلود.

د بيلګې په توګه کله چې په ۱۹۹۸ زېږديز کال د فبروري په څلرمه په روستاق او د هغه په چارچاپېر کليو کښې زلزله وسوه د کوکچې پر غاړو يې ۲۶ کلي د منځه يوړه چې ۱۰ کلي يې د يوه مخه ونړول، د ملګرو ملتو اړونده ډلې هلته ولاړې خو د لارو د وراني له امله د کتنې وړ مرستې هلته ونه رسېدې.

په غنج کښې ژوبل سوي کسان د درملو او خوړو د نه رسېدو له امله د ۲۴۱ تنو په شمېر مړه سوه او ورسره د کډر په کلي کښې چې د روستاق څخه د ۸ کيلو مترو په واټن پروت دی ۴۰۰ کورونې، او د ګنده په کلي کښې ۱۹۰ کورنې د يوه مخه له منځه ولاړې او همدارنګه د خالدره او بنديل په کليو کښې ۱۱۱ او د جرانيل په کلي کښې ۳۳۲ کورنيو خپل ژوند له لاسه ورکړ، پاتې دي نه وي چې دلته ټول کورونه په عادي او دوديزه توګه جوړ سوي وه

دوهمه بېلګه د وردګو او د اندراب په دره کښې يادولای سو چې ډېره وراني يې په ځاني او مالي لحاظ رامنځ ته کړه دلته هم ټول وران سوي کورونه په عادي توګه د لمړنيو توکيو څخه جوړ سوي چې توکي يې اومې خښتې ناټينګه لرګي، ختې او هغه ډبرې وې چې په ختو نيول سوي او يا ببله ختو کارول سوي وي، هغوی د کلنيک او ټرانسپورټي لارو څخه بې برخې وي او تر څنګ يې د خاورو ا وسيمې په اړه فني لارښووني هم نه وې ورته سوي خلکو د اړتيا له مخې د شپې تېر لپاره خاپونه جوړ کړي وه چې بايد د هغه تر مخه مسئولينو جيولوجيکي نقشې کتلې وای او د زلزلو د پېښېدنې سيمې په نښه سوي وای څو د دغه ډول ورانيو او زيانونو کچه د توان تر پولې را لږ سوي وای

دلته د څو نورو مخکنيو زيانمنو او ناوړو زلزلو يادونه هم کوم

(۱) هغه ناوړه زلزله چې د ۱۸۴۲ زېږديز کال د فبروري پر ۱۹ مه نېټه په کابل کښې وسوه تر درو دقيقو اوږده وه، او زياتي وداني يې وراني کړې چې ځاني زيان يې لږ و، څرنګه چې دا زلزله د روځې پر ۱۱ بجو او ۳۰ دقيقو پېښه سوه د ښار اوسېدونکي د وښتيا پر بنسټ خانونه وژغورل خو ودانيو ددغه لوی غم څخه خانونه ونسوای ساتلای، د دغې زلزلې اغيزو جلال آباد هم اغېزمن کړ او د دې ښار ۱/۳ برخه يې په کنډوالو واړول او تر څنګ يې د ټيګرې سيمه هم د يوه مخه ورانه کړه

(۲) د ۱۸۷۴ زېږديز کال په اګست کښې د هندوکش په سهيل کښې سخته زلزله وسوه چې د ګلبهار او جبل السراج ډېره برخه يې زيانمنه کړه

(۳) د ۱۹۳۴ زېږديز کال په مارچ کښې د ميمنې چارچاپېره سيمې يوې سختې زلزلې ګروېږې کړې

(۴) د کوټې زلزله چې په ۱۹۳۵ زېږديز کال د مې په ۲۰ مه نېټه د ۱۰ درجو په لړلو رامنځته سوه د (۲۶۰۰۰۰) کيلو مترو مربع په کچه سره پراخه سيمه يې د يوه مخه زيانمنه او ورانه کړه، چې د دې ساحې پر پراخو خاپونو باندې وران کلي پراته وه. چې له امله يې ۵۰ زره تنو خپل ژوند له لاسه ورکړ

(۵) د ۱۹۴۹ زېږدیز کال په مارچ کښې په خان آباد، ایبکو کابل او جلال آباد کښې د زلزلې سختې لړزې رامنځته سوي چې خاني او مالي زیانونه یې درلوده

(۶) بوې مرګوني زلزلې د ۱۹۵۶ په جون کښې د لغمان، کهمرد او بامیانو سیمې سختې ولړزولې چې درې یې وراني د غرونو یوه برخه یې رانسکوره او تر ۴۰۰ تنو پورې یې مړي پر ځای پرېښودل.

دغه بسولي زلزلې تکتونیکي سرچینه لري چې د جیولوجیکي ماتوالو او د هغوی په اوږدو کښې پېښې سوېدي په دایمي توګه په بلابیلو وقفو سره نوري ځانګړي زلزلې هم په ځانګړي سختوالي سره په افغانستان کښې رامنځته کېږي چې د هغوی منځکي په باندنیو هیوادو کښې وي.

خو هغه زلزلې چې منځکي یې د واخان، بدخشان او یا هندوکش کښې وي او تکتونیکي سرچینه ولري، د سیمې د اوسېدونکو لپاره تر ډېره زیانمنې او ورانوونکې وي. پدغسې حالونو کښې اړونده موسسات دنده لري چې لاندې ټکي په پام کښې ولري.

۱ د افغانستان جیولوجیکي انجمن (ټولنې) په بشپړ غور سره پرانېزي سي او په هغو کښې د زلزلو زیان منونکي سیمې په نښه سي

۲ د تکتونیکي ماتوالو په اړوند په روښانه توګه څرګندونې وسي او د خلکو سره ګډې سي

۳ د کورونو په جوړولو کښې د بشپړه غور څخه کار واخیستل سي څو

الف ـ د زلزلو د لړزېدو په ورانډي زیان ونه وینې
ب ـ د خاورې سختوالي په پام کښې ونیول سي
ج ـ د خاورې لاندې پوړونه وکتل سي
د ـ د لمړنیو او ابتدایي توکیو څخه کار وانه خیستل سي
هـ ـ د ریګي پوړونو د پاسه هیڅکله کورونه جوړ نسي
و ـ د غرونو او غونډیو په هغو برخو کښې چې د ۱۰ څخه تر ۱۵ درجو پورې زیات کوږوالی ولري د اومو توکیو کورونه جوړ نسي
ز ـ په لوړو سیمو کښې د ډېرو د بنوېېدو څخه مخنیوی وسي او بنسټیزه خنډونه یې په وړاندې جوړ سي

ب د طبیعي لوی غمونو، مصائبو او زیانونو یو مهم رکن وچکالي ده چې د لاندې لاملونو له مخې رامنځته کېږي:

ـ په بېړۍ کښې د منځکي د مخ د تودوخې تغیر چې هر کال د سانتي ګرېد یوه درجه لوړوالی کوي
ـ د اوزون کمښت، د توپونو شدت، د یخچالونو شانه تګ، د منځکي لاندې اوبو کښته والی
ـ د ځنګلونو پرې کېده، او په طبیعي او ارادي توګه د اوزونو لګېدنه
ـ د رودونو د اوبو کمښت د سرچینو څخه تر سیندونو پورې او د ډنډونو او جهیلونو وچېده

---

## وېره

د یاسین ساه بنده بنده کېده، له دې وېرې ساه اخیستل ورته ګران و چې هغه سړی له جیبه لاس ولې نه راباسي! له ستر ګو یې معلومېږي چې د حملې کولو په حال کښې دی. که حمله راباندې وکړي څه به کوم!

رانه وبه وایي چې دباندې راووزه!

که به مې د سر له وېښتانو ونیسي راکش به مې کړي او له جیبه به چاقو راباندې راوکاږي او پر مړی به یې راکښېږدي!

څه به کوم! د داسې وچ ولې ولاړ دی!؟

په همدې کښې هغه سړي له جیبه لاس راوکیښ او بیا د وره په ترلو بوخت سو، هغه دریم ور هم بنداوه، لاندې سمندر و که ور غورځي نو له شکه وتلی مرګ و، د یاسین وېره د وروستي برید په رسېدو وه

یو دم یاسین رانبوپ کړل، هغه بل کس ټکان وخوړ، ده ته یې وکتل او په جیب یې لاس دننه کړ، په یاسین کښې خدای ﷻ له کومه دومره توان پیدا کړ چې د "یاعلي" له نارې سره یې هغه کس له پښو ونیو، پورته یې کړ، او دباندې یې وغورځاوه، سمندر ته د لوېدو پر وخت د هغه له خولې څخه چیغه پورته سوه

"الله !"

یاسین وچ پاته سو، اورګاډی روان سو، هغه حیران سو چې آیا هغه هم مسلمان و! خو هغه د وېرې له شکنجې څخه خلاص سوی و لکه د مرګ له خولې څخه چې پاته سوی وي.

مابنام هغه فاطمې ته و ویل ... "که داسې نه وای سوي نو ما به هم هغه ته سملاسي د مسلماني ثبوت څنګه ورکولای؟

# شراب د انسان ډېر بد دښمن

د "قرآني آیات او ساینسي حقایق" له کتاب څخه د عبدالمالک "همت" ژباړه

قال الله تعالی: (یسئلونک عن الخمر و المیسر قل فیهما اثم کبیر و منافع للناس و اثمهما اکبر من نفعهما) (البقره: ۲)

ژباړه: پوښتنه کوي له تا څخه (اې محمده!) چې د شرابو او قمار څه حکم دی؟ ورته و وایه: په دواړو کښې لویه ګناه ده که څه هم د خلکو لپاره په څه ګټه هم پکښې وي، خو ګناه یې تر ګټې ډېره زیاته ده.

د نړۍ د روغتیا نامتو ماهر پروفیسر هرش HIRSCH پر دې موضوع باندې په خپل کتاب کښې وایي: "متمدني امریکا پنځلس کاله پرله پسې هلې ځلې وکړې چې پر شرابو باندې بندیز پلې کړي، اما پلې یې نه کړلای سو، خو اسلام څوارلس پېړۍ دمخه په بریالیتوب سره پر شرابو بندیز عملي کړ او تر اوسه یې پلي کړی دی.

په قرآن کریم کښې پر شرابو باندې بندیز په درو سورتونو کښې راغلی دی، د البقرې په همدغه پورتني آیت کښې، د نساء د سورې په (۱۳) آیت کښې او د المائده د سورې په (۹۰) او (۹۱) آیتونو کښې.

دمخه تر دې چې پر روغتیا باندې د شرابو د زهرجنو اغېزو په هکله بشپړه رڼا واچوو، د هغو د کیمیاوي اجزاوو په اړه به لږ څه معلومات وړاندې کړو.

د کیمیا پوهنې *Chemistry* له مخې مونږ ته دا معلومه ده چې الکحل (شراب) د ویلې کولو یا حلولو لپاره یو خواکمن محلول دی. په تېره بیا د غوړزګې لپاره. خو په غذایي اصطلاحاتو کې دا حلوونکی نه، بلکې ټوکر ـ ټوکر کوونکی شی دی. له دې امله شراب د انساني جسم لپاره یو نقصان رسوونکې کیمیاوي ماده ده، چې د انسان اینه سمدستي ټوکر ـ ټوکر کوي او لکه څنګه چې زیاتره د هغو خینې شوقیان ادعا کوي، هغه هیڅ کوم غذایي ارزښت نه لري. خو کله چې شراب د جسم دننه ته رسیږي، نو د بل هر ډول خوړو برعکس د بدن جزو ګرځي یا هضمیږي *Metabolized* کیږي چې یوازې دغه ظاهري ګټه یې په آیت کریمه کښې ویل سوې ده.




**الف ـ د هضم پر نظام باندې د شرابو اغېزه**

لکه چې پوهېږو غاښونه، خوله، ستوني، غاړه او کرنکه ډېر مشکل کار تر سره کوي او پر هغو باندې ډېر حساس استر *Mucous Membrance* غوړېدلی دی. د شرابو خوړلو له امله پر دغه حساس استر باندې ډېره بده اغېزه پرېوزي او د سوي (سوزش) باعث ګرځي چې په پایله کښې د بدن په دغو غړو کښې د ضعف رامنځته کېدل پیلیږي او پای په سرطان بدلیږي. له دې امله دی چې کومې اداري چې د سرطان له ناروغۍ سره په مبارزه بوختې دي له ۱۹۸۰ ع کال څخه را په دېخوا د شرابو پر ضد اوږدمهالي او سنجول

سوي اقدامات کوي.      دا هم یولـو تـه معلومـه ده چـې د شـرابو لـه املـه د معـدې ډېـرې خطرنـاکې ناروغـۍ لکـه Gastritis پیدا کیږي دا ځکه چې د شرابو له خوړلـو څخه په وینو کې موجود لانیپیډ Liquid کوم چې یو خـاص ډول غوړ ګي ده، وبلېږي. دغه لانیپډ یو ډول ساتونکي اسـر مهیا کوي چي تیزابیت یعنې هایـدروکلورک ایسـډ ... د معده باندې نقصان رسوونکې اغېزه نـه ښـندي کـه څـه هـم همدا اوس په بشپړه توګه نه ده ثابته سوې چې شراب لکه چې د ستوني او سرې غاړې د سرطان باعـث ګرځـي، همدغسـي د معـدې د سـرطان باعـث هـم ګرځي که څنګـه ! خـو ورځ پـه ورځ دا اند پیاوړی کیږي چـې د معدې په سرطان کښې هم شراب اغېز لري.

شراب ډېره بـده اغېـزه پـر اثني عشري یـا دوولس ګـوتې کولمو Duodenum باندې کوي. دغه خـای د ډېـرو نـازکو کیمیـاوي اثراتـو د واقـع کېـدو منونکی دئ. شراب د دغه خـای هغه خاصیت اغېزمن کوي چې د خانګړو هضم کوونکـو لعـابو د خارجولو په صلاحیت پـوري اړه لـري او د هغـه پـر کیمیـاوي حساسیت اغېزه ښندي. شـراب د هاضـمې د دغـې ډېـرې مهمـې لارې تر خرابولو وروسته له اینې څخـه د رامنځتـه کېـدونکو هاضم لعاب Bile پر راوتلو هم اغېزه اچوي.

دغه راز د شرابیانو د دوولس ګـوتې کـولمې او تریخـې پوست تل ناروغه وي یا زیاتره سم کـار نـه کـوي. چـې دغـه حالت هر شرابي د معدې د ګیس (باد) او بدهضمي په بوخلـه اخته کوي. د معدې دغه تکالیف پر نـورو کولمـو هـم اغېـزه کوي، لکه چې د هضم د نظام کوم چې کمپیوټر غوندي کار کوي، ښه ترتیب او یو له بله مرسـته هـم ګـډوډوي. یـو روغ انساني جسم هر هغه شی هضم کوي چې اړتیا ورته لري. چې دا د هضم نظام ته د خانګړو لارښوونو په ورکولو سره تر سـره کیږي. خو تر ډېره حده او په مستقله توګه د شرابخورو په اړه دغه کنټرول لـه منځـه ځـي او د هضـمولو عمـل بیلـه کـوم کنټرول او څه تـوپیره روان وي. چې بـده پایلـه یـې د ډېـر چاغښت په بڼـه څرګنـدیږي. دا لـه دې املـه چـې دغـه ډېـر هضمول تر دې زیات بل څه نه سي کولای، بیله دې چـې د جسم د ورو حجرو مـنځ Intestines د غوړ ګیـو ذخیره کول پیل کړي. په حقیقت کښې د غوړ زړه دغه ډېره اندازه د زړه په اعصابو پوري نښلي او په دې ډول زړه په ... ډول خطرنا ناروغیو اخته کیږي.




د شرابو ډېره بده اغېزه پر اینه لوېږي. د انسان اینـه هغـه حساس لابراتوار دئ چـې د شرابو هره یوه کوچنۍ ذره د زهرو غوندي محسوسوي. پر اینه باندې د شرابو اغېـزه دوه ډوله وي.

۱. د شـرابو خوړلـو پـه صـورت کښـې د جسـم ورې حجرې د الکحلـو د ختمولو پـه چـاره پـه بشپړه توګه لګیا کیږي. چې پـه دې توګـه هغـه خپـل نـور کارونـه پرېږدي.

۲. د ایـنې کیمیـاوي عمل چې یو په بل پسې پر مخ ځي، حساسیږي. چـې د شـرابو د بـې کنټروله اغېزې لـه املـه وران ویجاړ سـي. د دې پایله دا سي چې اینه یو کار په پلاوو ـ پـلاوو تکـراروي او له دې ډول زیات، پرله پسې او بې اړتیا محنت او مشقت څخه اینه کمزورې سي.

دغه اثرات اینه د خطرناکو پایلو سـره مخـامخ کـوي. پـه دغو اثراتو کي ډېره مشهوره یې د اینې سره نښلېده او تنګېـده دي. چې دا د دې ژوندی ثبـوت دئ چـې د اینـې ورانـي او خرابي بشپړه سوې ده. له ډېرو خطرناکو ممکناتو څخه دا هم کېدای سي چې د شرابو خوړل یو په بـل پسـې د اینـې ټـول افعال ویجاړ کړي.

له دې افعالو څخه یو دا دئ چې اینـه هغـه اجـزاء پیـدا کوي چې د هغو څخه د وینو عملیه رامنځته کیږي. نو څنګـه چې د شرابو له خوړلو څخـه اینـه دغـه اجـزاء نـه سـي پیـدا

کولای او یا یې په تولید کښې ډېره لږتیا راځي، له دې امله ټول عملي شرابیان د جسم دننه کمزوري وي. که څه هم د دوی څېرې د وینو د رګونو د غځېدو یا پراخېدو له امله خواکمني ایسي خو د دوی د هډوکو مغز پوچ سوی وي. یعني په حقیقت کښې د وینو د تولید عمل بېخي ختم سوی وي، یا خو ډېر کم سوی وي. پر دې سربېره د اینې هغه خواکمنتیا چي له هغې څخه د جسماني ساتنې غړي لکه ډول ډول ګلوبین په تېره امینو ګلوبین په شرابیاتو کې تر خطرناکه بریده کمیږي. چي پایله یې دا سي چي په دغو وګړو کې د ناروغیو په وړاندې د مدافعې څواک لږ سي.

شراب کله کله د اینې د فعل د نابېره دربېدو لامل هم کیږي. په دې صورت کښې شرابي د بېسد تیا په حال کښې مري. د اینې په اړه یوه بېلګه هم داسي نه ده لیدل سوې چي پر هغې دې د شرابو د تاواني اغېزو ثبوت په لاس را نه سي. البته په دې هکله خبرې ډېرې جدي دي، خو زه یې تر دې زیاتي نه سم څرګندولای.

**ب ـ د وینې د دوران پر نظام باندې د شرابو اغېزه**

د وینې پر دوران باندې د شرابو اغېزه دوه ډوله وي. یو پر اینه باندې د اغېزې په ذریعه بالواسطه وي. بل د زړه پر تنسته باندې د بېله واسطې اغېزې په ذریعه په اینه کښې (کومه چي په وینو کښې د غوړزګیو په ویلې کولو کښې تر ټولو ډېر مهم عمل تر سره کوي)، ضعف او خرابي پیدا کوي. چي په پایله کښې یې د وینو لېږدوونکې وړې عصبي رشتې سختیږي او د وینې د فشار تکلیف ځنې پیدا کیږي. له بله پلوه د شرابو د تېزې له امله د سوځنې له عمل څخه د وینو د بهېدو په مخصوصه لار کښې ناسمتیا راځي، چي د هغې له امله د زړه دربې رامنځته کیږي. پر دې سربېره د شرابو له امله په زړه کښې د غوړزګیو ذرې ټولیږي. او په دې ډول پر عصبي نظام باندې د بدې اغېزې په ذریعه د زړه په کار کولو کښې ګډوډي پیدا کیږي. دا جوته سوې ده چي عملي شرابي بالاخر یا د اینې په فعالیت کښې د ګډوډۍ له امله یا د زړه د دربېدو له امله ځپل ژوند له لاسه ورکوي. یو سړی چي د زړه په تکلیف اخته وي هغه ته د شرابو د یوه څاڅکي خوړل د دې معنا لري چي د ځپل ژوند یا ځپل ځان د کوم غړي د خرابېدو څه پروا نه لري.

د شرابو ځیني عملیان په دې اند دي چي په لږ او مناسبه اندازه شراب چیښل د زړه تشنج یا درد ارامو‌ي. چي دا په وار د واره کښې د شرابو ګټه بلل کیږي، خو دا خبره له ساینسي او طبي نظره کوم اصل نه لري.

د شرابو له استعمال څخه د انسان پښتورګو ته کوم چي د وینې د دوران وروستی ځای باله سي، هم ډېر ستر تاوان رسیږي. دا ځکه چي پښتورګي د ډېر حساس کیمیاوي جوهر Valence د یو ځای کېدو په ځای کښې د چاڼوونکو کار ورکوي. خو شراب (الکحل) دغه نازک عمل هم ګډوډوي. دا یو منلی حقیقت دی چي هغه شراب چي د الکحلو اندازه یې لږ وي، پښتورګو ته لا زیات تاوان رسوي. لکه چي د هغو وګړو پښتورګي چي زیات بیر خوري Beer زیاتره خرابې وي.

د Lymphatic یعني د جسم د هغو وړو ـ وړو رګونو نظام چي بې رنګه خولې ځني وزي په انساني جسم کښې زښت زیات ارزښت لري. د دغه نظام د وینې رګونو ته د شرابو له لاسه نه رغېدونکی تاوان رسیږي. ځکه چي غوړزګي لرونکي ووده ورکوونکي مرکب (لانیپډ) په دغه نظام کښې ډېر ستر ځای لري، خو د شرابو تاوان رسوونکې اغېزه دغه حیرانوونکي ساتندوی نظام ګرد سره پوپنا کوي.

که لوی څښتن ﷻ لکه چي د قران کریم په بېلو بېلو آیتونو کښې یې ویلي دي د ځپلو پېرزوینو له مخې له نورو لارو د انساني ژوندانه ساتنه نه کولای، نو موږ به په ډېره څرګندتیا سره لیدلای چي شراب څونه ضررناکه دي.

**ج ـ پر عصبي نظام باندې د شرابو اغېزه**

شراب د عصبي رشتو په هغو نریو پردو ننوزي، کومي چي دوده ورکوونکو غوړزګیو غوندي مرکب یعني لانیپډ په حفاظت کښې وي. چي په دې توګه د دغه نظام په بربښنایي رابطو Electrical communication کښې خلل اچوي. دغه خراب اغېز په دوو بېلو بېلو ذریعو څرګندیږي. د هغه لومړی اغېز د نشې د نابېره حملې په توګه وي. خو د هغه ډېر پایښتي اغېز ډېر خطرناکه وي. شراب ورځ په ورځ عصبي نظام ته داسي تاوان رسوي چي څو ډوله ناروغۍ ځني پیدا کیږي. که څه هم په پیل پیل کښې د شرابو اغېزه معمولي یا نا څرګنده وي، خو بیا هم د هغو پایښتي خرابي اغېزې له هماغه پیله څخه رامنځته کیږي. نو د هغو کسانو دا خبرې چي وایي: "ما شراب نه نشه کوي، ځکه نو بده اغېزه هم نه راباندې کوي." خوشې د ماشومانو خبرې او ځان غولول دي.

د شرابو بدې اغېزې په ځوانۍ کښې په تېره په کوچني والي کښې بېخي زیاتي وي. په عامه توګه ټاکلي ناروغۍ لکه پرتې ویل، له وهم او بیرې څخه رېږدېده Korsakof Syndrome او د Plyneurtis

مجموعي علايم د شرابو د اغېزو له امله وي. د شرابو ستر اغېز د عصبي نظام پر مراکزو باندي تر دې کچې رسيږي چې درملنه يې ناشوني سي. د نومونو او الفاظو هېرېدل Amnesia او د لاسونو رېږدېدل د دغي عصبي ناروغۍ نخښې دي.

څنګه چې شراب غوړزګي ويلي کوي. نو په جسم کښي په جوړوونکو حجرو ننوزي او ډېر بد نقصان ور رسوي. د دې عام فهمه مثالونه د نوي توکم د ذهانت په لړوالي او ناقصه وده کښي په ګوته کيږي. ډېرو ژورو څېړنو او سروې ګانو دا حقيقت په ډاګه کړې دي چې د ماشومانو د ذهن کوټه والی له دې امله وي چې مور او پلار يې ډېر او د زياتي فيصدۍ لرونکي شراب خوړل. دا هم ښزته سوې ده چې شراب د ښځي تخم Ovum او د حيات د تخم حجرې Egg cell ته ډېر زيات تاوان رسوي. چې د دې په پايله کښي د شرابي ميندو ماشومان زياتره په موروثي توګه د دماغي يا قلبي صدمو ښکار کيږي. البته د شرابي پلار له لوري دغسي پېښې په سل کښي تر درو اوړي.

**د ـ پر ټولنيزو روحيانو باندي د شرابو اغېزه**

په پلاوو ـ پلاوو جوته سوې ده چې شراب د ټولنې او ټولنيزو اړيکو پر ټينګښت باندې ډېره ناوړه اغېزه کوي. موږ د دغو اغېزو د څو بېلګو يادونه کوو.

۱ شرابيان د دوی د ډېري ژر او سملاسي غوسې له امله. دوی په ټولنه کښي په بې شمېرو شخړو او جنګ جګړو اخته کوي.

۲ د طلاق بې شمېره پيښې د ټولنې ښستونه کمزوري کوي. چې په پايله کښي يې د مجرمانه اندونو او ذهنيتونو درلودونکو ماشومانو د ډېرېدولو له امله. ټول ولس په ډېره خطرناکه توګه متاثر کيږي. د طلاقونو پرله پسې زياتوب د شراب خورۍ له امله وي.

۳ د ډول ـ ډول هنرونو او کارونو پر هنرمندانو، کارګرانو او مزدورانو باندي د شراب خوړلو له امله تل تنبلي او کهالي زور کړي وي، چې د دوی پر کار او مهارت او د دوی د کار د محصولاتو پر کيفيت باندي ډېره بده اغېزه ښندي. څرګنده ده چې نهايتا يې تاوان ټولنې ته رسيږي.

۴ د شرابو له امله په انسانانو کښي يو پر بل پېرزوينه او زړه سوی له منځه ځي چې پايله يې دا کيږي چې د ولسي او ټولنيز يووالي اند او تفکر او د ټولنې د ګټو پر ضد توکو سره د جهاد او جګړې ولوله په بشپړه توګه ختميږي او له منځه ځي. پورته څلور ډوله ربړو لوېديز ټولنپوهان دونه ډېر په فکر کښي اچولي دي چې د خپلو حکومتونو پام يې په وارو ـ وارو هغو ته اړولی دی او څرګنده کړې يې ده چې که د شرابو خوړل همدغسې پر مخ ولاړ سي په دغو هيوادونو کښي به د ملتپالني ولولې ګردسره له منځه ولاړې سي. قرآن حکيم هغه مهال د دې ربړې نوغې وايست، چې په هيڅ يوه ټولنه او هيڅ يوه پوه او فيلسوف کښي دا همت نه وو. اوس هم د شراب خورۍ ربړه د غير اسلامي ټولنو ښستونه له بېخه سستوي، خو د لوی څښتن ﷻ په حکم او پېرزوينه زموږ معاشره له دې بوخلې څخه خوندي پاته ده. نو لوی څښتن ﷻ لره دې حمد وي.

**پښتو !!!**
پښتو لوړ همت دی.
پښتو حميت دی.
پښتو غيرت دی.
پښتو جرئت دی؟
پښتو اراده ده.
پښتو هوډ (عزم) دی.
پښتو متانت ، ثبات او استقامت دی.
پښتو حزم دی.
پښتو حلم دی.
پښتو توره ده.
پښتو د پښتنو هغه مهمه وسله ده چې په هر ډګر کښي يې دوی بريالي کړي او هيڅ يوه وسله ورسره مقابله نه سي کولای.
پښتو تورزنتوب دی.
پښتو نارينتوب دی.
پښتو مړانه ده.
پښتو د پښتنو هر ګوره کلک سنګر دی.
پښتو د پښتنو نه چاپېره خورا کلکه کلا ده.
پښاته د ژوندانه درستي ګراني يواځي په پښتو څغملي، له سره اړولي او له ځانه ليري کولای سي.
د ژوند په تيارو کښي پښتانه يواځي د پښتو په رڼا لاره ميندلای او سيخولای سي.
**پښتون بابا ـ ارواښاد محمد ګل مومند**

# طبيعي ژبه او ټولنيزه کسبي ژبه

استاد حيات الله "رفيقي"



**ليکوالي :**

ليکوالي په عمومي ډول د ليکوالۍ پوهانو پر دوو ډولونو باندي داسي وېشلې ده چي : يوه ځانګه املاء او بله ځانګه يې د انشاء په نامه نومولې ده، چي دلته به دا دواړې ځانګه په څه تفصيل درنو لوستونکو ته وړاندي سي.

لومړی املاء : د ژبې پوهانو املاء په لغت کښي د تشو يا خالي ځايو ډکولو ته وايي او په عربي ژبو کښي املاء داسي بولي، په لاتيني ژبه کښي و املاء ته ډکير Dicar او په انګليسي ژبه بيا ورته Dictation وايي، او په فرانسوي ژبه ئې Dictée بولي.

املاء په ادبي اصطلاح د ليکوالي پر معيار داسي راپېژندل سوېده : املا يعني خپلي خبري او يا د بل خبري په درست ډول ليکلو ته املا وايي، هغه دا ليکونکي چي څه ليکي بايد د درست تلفظ له رويه يې په صحيح ډول وليکي او په نادرست تلفظ پسي ولاړ نسي، د بيلګي په ډول : د هلک پر ځاي بايد (الک) ونه ليکل سي. د کلام يا جملو په ليکلو کښي هم بايد ليکونکي په جدي ډول د ژبښووني (ګرامر) مراعات وکړي، که چيري يوه جمله ليکي نو بايد په پوره او بشاره ډول يې وليکي، په لنډ او مخفف ډول يې ونه ليکي، مثلاً دا جمله : (څه يې کوې ؟) بايد داسي ونه ليکل سي (څه يې کې) په همدې ترتيب د دوو کلمو يو ځاي ليکل هم د املاء د قانون سره سمون نه لري، خلاف د املاء د اصولو ګڼل کيږي. لکه په دې جملو کښي : (ټول سړي او يا لوی کور) بايد داسي ونه ليکل سي : (ټولسړي او لويکور) خو دې ته هم بايد فکر وسي هغه کلمې چي يو ځاي ليکل کيږي، نو لازمه نه ده چي جلا يې وليکو، لکه دا جملې : (ټولی مشر او يا ټولواک يا بېلتانه) بايد داسي ونه ليکل سي : (ټول ی مشر، ټول واک، بېله تانه) ولي چي په معناوو کښي يې بدلون راځي.

په پښتو کښي د نفي او نهي توري (مه او نه) بايد د افعالو سره ونه ليکل سي لکه په دې ډول : (مخه، نويني، مخوره او نخوري). دا توري بايد داسي وليکل سي : (مه خه ، نهويني، مه خوره او نه خوري) دا هم بايد په ياد ولرو چي ځني د نفي توري د ځينو کلمو سره يو ځاي ليکل کيږي، بايد جدا ونه ليکل سي لکه : (نسي، نسته، مکوه او مسه)

په پښتو کښي ځيني توري سته چي په دري، عربي او نورو ژبو کښي نسته د دغو تورو پېژندل د تلفظ او اداء طرز په املا کښي د هغو د ليکلو ځاي ډېر مهم دئ، لکه دا توري : (ښ) بايد په (ش) باندي تلفظ نسي او نه د (ش) په شکل وليکل سي، لکه د (ښه) په کلمه کښي د (شه) او يا (ګوښه) په (ګوشه) او يا (لوښی) په (لوشي) باندي تلفظ سي او نه وليکل سي، په همدې ترتيب د (ړ، ژ او ګ) توري په ليک دود کښي په خپل اصلي شکل راسي مثلاً په دې جمله کښي "په پسرلي کښي د ميږو او اوزو اوړه ښه خوند کوي" بايد داسي ونه ليکل سي : "په پسرلي کي د ميګو او بوزو اورګه خه خوند کوي" که څه هم د ګړ دود په وجه د پښتو په ژبه کښي زيات ګړ دودونه سته خو په معياري ليکدود کښي بيا د پښتو مختلف ګړ دودونه په

نظر کښې نه نیول کیږي همداسې په پښتو کښې نور توري هم سته لکه (خ، ځ، ډ، ړ، ټ او ڼ) چې په لیک باید د معیاري لیکدود د اصولو باندې ولیکل سي.

**تبصره** : د پښتو د ژبې لیکدود یعنې په املا کښې که څه هم لرغوني او زوړ دؤل يې تر اوسه پورې په پوره او درست ډول په ګوتو کښې نسته خو د (۱۳۹ ص) کال د امیر کروړ جهان پهلوان یو نظم چې په پټه خزانه کښې لیکل سوی دی د دې ژبې یعنې د پښتو ژبې لپاره ډېر مهم ګڼل سوی دی، چې په راوروسته کښې بیا د سلیمان ماکو (تذکرة الاولیاء) کتاب دی چې په کال (۶۱۲ ه) کښې لیکل سوی دی، تر دې کتاب را وروسته یو بل کتاب چې تر پورته کتابونو لرغونتوب ولري تر اوسه پورې لا نه دی موندل سوی، خو بیا هم په راوروسته وختو کښې د هیواد په دننه کښې د پوهانو د زیار او زحمت په برکت د پښتو د لیک دود، املاء ډېر پر مختګ وکړ، او د ګران هیواد په مرکز کابل کښې لومړی د پښتو ټولنې او بیا د علومو اکاډمۍ په جوړېدو سره زموږ د پښتو ژبې پوهانو، عالمانو، ادیبانو، لیکوالانو او هم د پولې ها خوا پښتنو پوهانو د پښتو ژبې لپاره هر اړخیزه تلاښونه کړي دي او د دوی د زیار او زحمت په نتیجه کښې د پښتو ژبې لیک دود املاء معیاري ګرزېدلې ده، که څه هم فعلا خنې کړ دودیزه اختلافات موجود دي، خو ګوندي وي چې راتلونکې به نور لا ښه علمي هڅې رامنځ ته سي او یو ښه په زړه پورې یو معیاري املاء به رامنځته کړي.

**دوهمه څانګه انشاء**

انشاء په عربي لغت نامه کښې و خلق، پرورښت او هم د نوي شي پیدا کېدو ته وايي. خو په ادبي او لیکوالې اصطلاح کښې بیا انشاء و هغه فن ته وايي چې یو نوی فکر او ښکلی خیال په خوږه ژبه د الفاظو په ښکلي انداز انځور کړل سي چې دا بیا د لیکوالي د فکر او احساس استازیتوب کوي. پخوانو انشاء ته د لیکني او ښوونې فن وایه، خو نن بیا د انشاء او لیکوالې هنر دا دی، چې خپل مطلب په درست ډول اداء کړي هغه هم په دې شرط چې د ژبې رواني او بلاغت هم د نظره ونه غورځول سي، لیکونکی باید په خپله انشاء کښې دا لاندې ټکي په فکر کښې ولري

۱) **د لیکوالې سبکښې** : د انشاء په مرسته یو لیکوال کولای سي هغه څه چې د ده د فکر څخه ژر وزي پر کاغذ باندې یاد داښت کړي تر څو لوستونکي په پوه سي خکه د انشاء په واسطه لیکوال کولای سي خپلې تیرې خاطرې د انشاء په خوږه ژبه تشریح او تفسیر کړي چې دا د انشاء د لیکوالې لپاره یوه ادبي ژبه بلل کیږي، د دې ژبې لومړي توري همدا انشاء ګڼل کېدای سي هغه دا چې هر څوک چې د لیک سره سروکار لري نو هغه ته دا اړینه ده چې د لیکوالي او انشاء په فن ځان بلد کړي.

۲) **د انشاء توکي** : لیکوال په خپله انشاء کښې باید د څرګندو او بلدو الفاظو او کلمو څخه په خپله لیکنه کښې کار واخلي، د درنو، عامیانه، مبهمو او سپکو الفاظو څخه ځان وژغوري، خکه چې د لیکوال مهارت او کمال په دې کښې دی چې ښکلې ښکلي، خواږ او ذهن ته نژدې الفاظ او کلمات راپیدا کړي تر څو یوه خوږه او زړه راکښونکې انشاء رامنځته کې، چې دا په حقیقت کښې د لیکوال یو ښه مهارت او کمال دی، لیکوال دي دې ته هم فهم وکړي چې سږزه ښکلې ولیکي خکه چې بې سریزې لیکنه داسې ده، لکه بې مالګې خواړه که څوک خپله انشاء بې سریزې لیکي باید لنډه او هر اړخیزه وي په انشاء کښې باید د لیکنې مطلب په سریزه کښې هم نغښتی وي، د لیکنې شرحه او څرګندونه هم په انشاء کښې اړینه بریښي نو لازمه ده چې د لیکنې متن ښکاره او څرګند وي، چې په اخیر کښې د انشاء یا لیکنې نتیجه په څرګنده توګه د لوستونکو و ذهن ته انځور سي تر څو د هغې نتیجې پر اساس د انشاء ارزیابي وکړل سي

نوریا

**ګیله**

ما درنه څه غوښته تا څه راکړه ؟
د ژوند نشو کې دې ترخه راکړه !

ما وې ځارلې تاته ډېرې لارې
تا په راتلو کښې بیرته تله راکړه

زه د خنداوو د سحر په تمه
تا ډک له اوښکو دوه لیمه راکړه

زما موسکا چې دې بې روحه کړله
د ګل غوټو ته دې ساړه راکړه

ماته د درد سیندو کړه غېږه خلاصه
تا چې نن مینه په تاله راکړه

**پروین فیض زاده ملال**



د کندهار یو نومورکی شاعر:

# ملا عبدالغفور اخوند

۱۱۶۰ هـ ق ـ د ژوند زمانه

عبدالقدیم "پتیال"

د کندهار په ارغنداو کې د "خانه ګرداب" پـه نـوم کلـی چې ختیزي خواته یې د کندهار شاه ولیکوټ لویـه ولسـوالي پرته ده، خانته خورا درونـد ارزښت لري، د دغه کلي انګور او انار په دغو سیمو کې پوره شهرت لري، د دغه کلي پـر سـر د دهلې د بند د اوبو یوه دوه لارې پرتـه ده چـې څـوک ورتـه وګوري نو دا ګومان کوي چې دوه مین او نتلي زړونـه سـره بیلیږي. له دغې دوه لارې څخه یوې خواتـه د ارغنـداو لـوی رود په خورا بې پروایي او شاهانه ډول بهلیږي او بلـې خواتـه یې "لویه ویاله" په خورا آرام ډول جلا کیږي.

له دغه کلي څخه چې څوک لوېدیزي خواته رهي سـي نو لومړی کلی چې په مخه ورځـي هغـه تـه "خواجـه ملـک" وایي، چې اوس یې زیات خلک د "ملک" توری په یـوه هجـا وایي، خو په اصل کې "ملک" دوه سپینه لري او خج (فشار) پـر دوهم سېلاب دی، د دغه کلي جنوبي لور ته لویه ویاله په ډېر ډاډه زړه بهیږي او شمالي لور ته یې د انارو ګڼې ونې په خورا لړزان ډول ولاړې دي. د دغه کلـي د انـارو باغونـه پـه ټـول کندهار کې پوره نوم لري او په ښار کې تـر بـل هـر څـای د "خواجه ملک" انار په ګرانه بیه خرڅیږي. پنځه کاله وړاندې د کندهاري دوو سره سم چې د جمعې په شپه خلک لـه کـوره وزي او یو باندار جوړوي، نو زه هم له څینـو ملګـرو سـره د مېلې په نیت له ښاره د خواجه ملک کلي پر لور وخوځېدم، د شپې یوولس بجې به وې چې په یوه باغچه کې مو سـندري واورېدې چې میده ـ میده پیاله هم ورسره وهـل کېـده، تـر ګڼو ونو لاندې د ګاز ډبه لګېده او شـا و خـوا څـو څوانـان د پتیانو په څېر تر راچاپېرول او په دغو ځوانانو کـې یـو څـوان چې د تور اربش ترخزي کالي او ژړه زرینه لونګۍ یـې تـړلې وه په خورا لوړ آواز سندري زمزمـه کـولې او د چـاړواکو لـه ویري یې کرار ـ کرار سپینه میسي پیاله هم ورسره وهله، موږ

هم په مجلس کې ور وختو او ورسره کښېناستو، دغه قلندري ځوان له خپلې شنې کتابچې څخه د کندهار د اوسنیو محلي شاعرانو شعرونه ویل، تر څو بدلو وروسته یې یوه بله غزل پیل کړه چې ماته نابلده وایسېده، او د غزل په پای کې یې ملا عبدالغفور اخوند یاد کړ چې تر هغه دمه یې ما کوږټ نوم هم نه ؤ اروېدلی، ده به لا بله سندره پیلول چې په مجلس کې مې یې خر ورګوډ کړ او ورته ومې ویل چې وروره! دا شعر دې له کومه کړی دی او دا شاعر څوک دی؟

ځوان راته و ویل: چې دا شاعر زموږ یو لیري نیکه ؤ چې ځیني شعرونه یې ماته خپل پلار راکړي دي او له دې سره یې سمدستي د صدرۍ په جیب لاس ننه ایست او یوه خوړینه کتابچه یې راوایستل، او ویل یې دغه شاعر په خپل لاس کښلي دي (والله اعلم باالصواب)، ما چې کتابچه سره واړول ـ راواړول په رښتیا هم ډېره زړه کتابچه وه، او لیک یې هم ډېر ناوړه و، د یوه شعر په پای کې لیکل سوي وه چې (خاوري ملا عبدالغفور، سن ۱۱۶۰ هـ ق)، دا خبره ماته ډېره جالبه وایسېده چې نېټه پر لیکل سوې وه، ما له ځوانه څخه وپوښتل چې دا سړی څه وخت تېر سوی دی، نو ده راته و ویل چې پلار مې وایي چې دوه دوه نیم سوه کاله یې کیږي، ماته هم لیکل سوې سنه مستنده وایسېده او ځوان ته مې و ویل چې دغه کتابچه ماته راکړه، خو هغه انکار وکړ، او باالآخر مې دوه شعرونه ترې ولیکل او مجلس مې ترک کړ.

د پښتو ټولي معاصري تذکرې مې سره وپلټلې، خو د ملا عبدالغفور نوم مې نه کړ پیدا او نه مې یې یو ځای یادونه ولیدل، ځکه نو زه ده ته "د کندهار نومورکی" شاعر وایم.

د ملا عبدالغفور اخوند (۱۱۶۰ هـ ق) له دغو دوو شعرونو څخه داسي اوښاربږي چې دی د کندهار د دولسمی هجري پېړۍ له ډېرو زبردستو شاعرانو څخه و، خو دا چې له موږ سره د ده نور شعرونه نسته نو دا نه سو ویلای چې دی د کلاسیکو شاعرانو له جملې څخه ؤ او که له ځیني محدودو ولسي شاعرانو له هغې څخه، خو بیا هم دا اټکل کولای سو چې دی په خپل وخت (دوولسمه هجري پېړۍ) کې د وتلو شاعرانو له دوهم کتار څخه شمېرل کیږي، خو کاشکي چې موږ د ده نور شعرونه هم لیدلي وای او درنو څېړونکو د ده ادبي لاره ټاکلې وای، خو زه ځکه د ده په اړه څه نه وایم چې له یوه یا دوو شعرونو څخه څوک اټکل نسي کولای چې دی د کومو شاعرانو له جملې څخه و، که زه نور څه و وایم، خدای ﷻ مکړه چې ګناه راځخه وسي چې یا له مبالغې څخه کار وانه خلم او یا یې حق تر پښو لاندي نه کړم، بس پر لاندنۍ غزل یې اکتفاء کوو.

## غزل

غشـي د جفـا دي زمـا زړه سـورۍ ـ سـورۍ کـې (۱)
یـاره شـیرین ژونـد مـي سـتا و مـخ ته سـیلنۍ (۲) کـې
زړه مي آرام پروت و له خپل ځایه یې بسور نه خواړه (۳)
سـتا کـاږه نظـر پـه یـوه واري غرځنـۍ کـې
یـار سـره پخـلا وم خـو رقیـب دي ځـوانیمرګ سـي
وې (۴) کـړه غمـازي یـار یـې لـه مـا څخـه پـردۍ کـې
زلفـو د نګـار کړمـه هجـران تـه خـوارکۍ پیڼـه
کروړ (۵) صورت یې خدایه! راته ژړ سورۍ کودۍ کې
خـم چلـه (۶) بـه کـاږم لـه خلوتـه بـه بیـرون نـه سـم
یار چې مي د پیر مخ ته زما خوار وجود نذرۍ (۷) کې
ایږدم (۸) خپلي سترګي محبوبا ستا تر پکۍ (۹) لاندي
رحـم ګونـدي وکـې کـه زړګـي دي یـو څـه سـوۍ کـې
ونـه کـې کـاوړ (۱۰) پـر خـوار زبـون عبـدالغفور باندي
دا دنیـا ده تېـره نـور مـوزین د مـرګ نیلـۍ کـې



***لمن لیکونه:***

۱. د "کړی یا کړ" په معنا دی چې د کندهار خلک یې "کې" وایي.
۲. سپند، سپېلنی.
۳. خوړی، په محلي اصطلاح کې "خواړه" ویل کیږي.
۴. وې کړه ـ دلته یې لنډون بللای سو، د "ویلو" یاني "وې" په معنا نه دی چې په مشرقي کې ویل کیږي.
۵. کلک، سخت.
۶. یوه خاصه تصوفي جمله ده، چې څلوېښت شپې په خلوت کې تېروي.
۷. قربان ـ ځار.
۸. دا باید په یوه سېلاب کې و ویل سي، که نه نو د شعر وزن خرابیږي.
۹. موچڼو ته وایي، چې هم یې نارینه او هم یې ښځې په پښو کوي.
۱۰. درد، غوسه، قهر. میر حیدر صاحبزاده وایي:

پر واړه ګوره ونه کړې ته کاوړ
که نه بند به سي دا خوار بیا په چکړ

# د کار شرافت

ژباړه : حاجي بابا مصروف

دا یوه طبیعي او د خدای ﷻ د طرفه څخه امر دی چې موږ د خپل ژوندانه لپاره کار وکړو مګر ځینې خلک دي چې کار نه کوي، او خپل ژوند په بېکارۍ او تمبلۍ سره تېروي کار کول سړي ته شرافت ور په برخه کوي، همېشه خوشحاله او خندانه وي ځکه خپله ډوډۍ په شرافتمندانه ډول پیدا کوي که یو سړی وغواړي چې د قام لارښوونکی واوسي باید کار وکړي د نړۍ ټول پېشوایان او لېډران د کار په واسطه و لوړو درجو ته رسېدلي دي په صحیح روایاتو سره زموږ د پېشوا او لارښوونکي حضرت محمد مصطفی ﷺ خپل کارونه په خپله کول یاران او صحابه کرامو هم خپل کارونه په خپله سر ته رسول کار کول چې هر ډول کار وي شریف او واجب دی د بهرنی نړۍ لېډران مثلا ابراهم لنکن چې د امریکې مشهور جمهور رئیس دی د کار کولو په نسبت و جمهوري ریاست ته ورسېدی په داسي حال کښي چې د یوې غریبې کورنۍ او په لومړي سر کښي ډېر بېچاره او مسکین و

وایي چې یوه شپه یو پیره دار عسکر پر پیره باندې بیده و، دی ورغی وسله یې ځني واخیسته او تر سهاره پوري یې د هغه پر ځای پیره وکړه او سهار یې وسله بېرته ورته ورکړه عسکر په ډېره کښي و چې دی به د خپلې دندې څخه برطرفه سي مګر هیڅ نه سوه وریېښ او دی هغه ډول عسکر پاته سو

د مثال په توګه یو بزګر که چیرې پر خپله مځکه ښه کار وکړي حاصل به یې ډېر وي، که په مځکه ښه پوره زیار ونه ایستل سي معلومه خبره ده چې حصول به ئې کم وي په پخوا زمانو کښې چې نفوس کم او محصولات ډېره وه او هم د خلکو ضرورتونه لږ وو، نو په یوه کورنۍ کښي به یوه تن کار کاوه، او ټول فامیل یې مړولای سوای

مګر اوس چې حاصلات کم او د ژوندانه احتیاجات ډېر دي نو د هري کورنۍ ټول غړي باید کار وکړي او حتی ښځې هم مجبوري دي چې کار وکړي څو د کورنۍ ضرورتونه پوره کاندي نو ویلای سو چې صادقانه کار شرافت لري، که د وطن د آبادۍ لپاره هر ډول دنده یا کار وي د کار شرافت د کار په نوعیت پوري اړه لري بلکې صداقت په کار کښي د کارکوونکو لپاره عزت وریېدا کوي، دا د ناپوهو مفکوره ده چې دا کار شرافتمندانه او هغه کار بیا غریبانه دی

د مثال په ډول د یو لوړ رتبه چارواکي کار د یوه چوکیدار یا ملازم د کار سره مساوي دی، په دې توګه کار په صداقت سره سنجول کیږي نه د رتبې او چوکۍ له رویه خوشحال خان خټک د پښتو پلار او لوی عالم او بې سارې شاعر د یوه بیت په نیم بیتي کښي دې موضوع ته دا ډول رڼا اچوي "هر سړی پیدا دی خو خپل کار لره کنه" یعنی هر هغه سړی چې په یوه کار پوهیږي هغه کار اجراء کوي او نه ورځني خرابیږي

نو موږ ټولو لره ښايي چې خپل کارونه په صداقت سره پر مخ بوزو، خیانت په کار کښي خپله دغه کارکوونکي د ټولني لپاره مضر تماموي باید ډډه ورځني وسي ابراهم لنکن د خپل کار د صداقت په رڼا کښي وکولای سوای چې د خپل ریاست په دوره کښي د مریتوب قانون په دنیا کښي لغوه کړي

په آخره کښي دا مقاله د مولوي صاحب جلال الدین بلخي په دې دري بیت سره پای ته رسوم :

من طریق سعی می آرم بجا
لیس الانسان الا ما سعی



# پسرلی

# او د ګرکېښ پاڼې

عبدالمجید بابی

طبیعت اصلاً د ښکلا څرګندویه دی. د دغې ښکلا پېژندنه، او د هغې ستاینه، پالنه او روزنه بیا په حقیقت کښې د ژوندانه په اسرارو پوهېدل دي، په همدې اسرارو پوهېدل بیا پر طبیعت باندې د سالم عقل واکمني ده.

نو د همدې خبرې پر بنسټ زموږ لرغوني نیکه ګان د پېړیو پېړیو دمخه د پنځ یا طبیعت په ستاینه او د هغه د ښکلا په لمانځنه کښې ډوب وه.

په آریایانو کښې دود و چې سهار به وختي د لمر زرینې وړانګې د دوی د استوګنو په سیمو ځلېدې، او پر شینلیو به د پرخو څاڅکي د سپینو ملغلرو په ډول وغوړېدی دوی به د سوما غوړپونه کول.

د خوښۍ سندرې به یې ویلې، او اتڼونه به یې کول. کله چې به ستړي کېدل بیا به یې په ګډه د لوی دښمن یعنې تیارې د بربادۍ دوعاوې کولې، او روڼا به یې تلپاتې غوښته.

په ځانګړې توګه دوی به د سوما څخه خپل خومونه یا لوی لوی لوښي همدغه د پسرلي په ورځو او شپو کښې ډکول بیا به یې د کال په نورو ورځو کښې د هغه څخه کار اخیستی.

د دوی ټاټوبی ښکلی و، د دوی د استوګنې سیمه چې د اُکسوس او اُندوس تر منځ بیا د پامیر او کشمیره نیولې د هند تر سمندره اوږده او پلنه وه د طبیعت په لاسونو په ډېره ښکلا پسولل سوې وه.

پر همدغه پسوللې پراخه مېنه د پښت توکم زېږېدلی ـ لوی سوی او دلته او هلته سره تیت سوی دی.

د لرغوني اُکسوس پر غاړه د بلخ یا بخدي لرغوني او ښایسته ښار د دوی د پرمختګونو ښکارندوی دی.

د هندوکش، سپین غره او بابا د غرونو سمسورې درې او زرغونې لمنې د دوی د رمو ورشوګانې او د اباسین غاړې یې ورسره تر کتو لاندې او هم د دوی د تېرېدو مېنې وې.

دوی په پسرلي کښې ځانګړې مېلې درلودې، دا مهال به یې سندرې ویلې، شعرونه به یې اورول او په ګډه به یې اتڼونه کول.

د المان د (راین) د سیند پر غاړه په کلیوالي سیمو کښې اوس هم د فاشینګ یا کارنیوال په نوم پسرلنۍ مېلې کېږي چې زموږ د هیوادنیو مېلو سره ډېر ورته والی لري. دا خلک هم د اُکسوس د غاړو څخه هلته کوچېدلي او مېشته سوي دي.

تاریخ پوهانو خو (هومر) چې د لرغوني یونان د نوموتو پاړکیوالو څخه دی هم آریایي ګڼلی، ځکه د ده د (ایلیارد) او (اودیسه) په قصایدو کښې آریایي ځانګړتیاوې لیدل کیږي، هغه هم د لرغوني یونان د مېلو او د پسرلي د ستاینو څخه ږغیږي. او خپل اتلان ستایي.

په هر صورت د آریایانو مېلې به زیاتره د پسرلي په مهال کښې کېدې، هغه به د ګلانو او شنو مځکو دپاسه کیدې.

دوی د طبیعت ښکلا لمانځله او په ځانونو کښې یې د خوښۍ ولولې پیاوړې او غښتلې کولې.

دا روښانه ده چې د لرغوني زمانو د مېلو آره بڼه د مهالونو په تېرېدو سره یو ډول او بل ډول سوېده د غور واکمنو به د پسرلي په مهال د پسرلي ورځې او شپې په ځانګړې برم سره لمانځلې، هغوی به خپل پلازغولي او د هغه چارچاپېره سیمې په ډول ډول ښکلو ټوکرانو او د خپل مهال په غوره سوو او منل سوو جنډو باندې ښکلې کړې

وي، هلته به د سندارا غونډې وي، هلته به د اولس ډلې ډلې خلک د واکمنو تر ټاټوبي پورې تلله او د دې ښکلې ټاپې مبارکي به يې يوه او بل ته سره ورکول د مبارکيو د دود وروسته به د لا خوښيو دپاره پاړکيوالو (شاعرانو) خپل جوړ سوي پاړکي (شعرونه) اورول او بيا به د سازيانو لخوا د سازونو سره يو ځای بدرګه کېده



د غزنويانو دواکمنی پر مهال هم د کال لمړۍ ورخ په خانګړي دود سره لمانځل کېده، د هغوي په مهال کښې به هم واکمن پر ورېښمينو ټوکرانو د خپل پسولل سوي ښکلي او رنګين تخت د پاسه د ساتونکو تر څنګ د پلازغولي د لوړ پوړو سړيو سره يو ځای ناست وُ، او د فرخي او منوچهري غوندې تکړه او وتلو پاړکيوالو به خپل اړونده پاړکي ورته ويله او د واکمن له لوري به په ژبه او مال سره ستايل کېده او پلازغولي ته به د اولس ډلې ډلې خلک د خوښيو سره يو ځای راتله او د واکمن سربېره به ئې يوه او بل ته د دې ورځې رارسېدو مبارکي ويله او د نوي کال د نېکمرغه کېدو هيلي به يې ځرګندولې. دا هم بايد زيانه کړو چي د کال لمړۍ ورخ يوازې د واکمنو په پلازغولو کښې نه لمانځل کېده بلکې په هر کور ـ هر کلي او هر ښار کښې په بېلا بيلو ډولونو لمانځل کېده ان تر اوسه پورې د دې ورځي په درنښت د دوديزه لمانځلو تر څنګ په زياترو سيمو کښې د کال د لمړۍ ورځي په

شپه نجوني او ښځي او يا په يو شمېر نورو سيمو کښې بيا خوانان او سړي د سمنو د هغه دېګ څخه چاپېره راټولېږي چي د ډيرو ورځو وروسته ئې په هغه کي څه راټول کړي وي د هغو د پخېدو دپاره ټوله په ګډه همدا شپه په خوښيو او سندرو روڼوي. په نورو سيمو کښې بيا د همدې ورځې د خوړې نمانځني دپاره اووه ډوله وچي مېوې په اوبو کښې خيشتوي او بيا ئې د نوي کال په لمړيو ګړيو کښې د خپلو کورونو د غړو او خپلوانو سره يو ځای پر پلنو کندريو (سترخوانونو) خوري.

د لندو مېوو په برخه کښې که چا انار د ژمي په شپو او ورځو کښې ساتلي وي هغه دانه کوي او د هغه ګروه په بنسټ ئې خوري چي ګواکي د کال په اوږدو کښې بيا دغه چا چي انار وخواړه د زهر لرونکو خوا ښخونو (خزندو) د خورک او چيچلو څخه به خوندي وي.



لکه چي مخکي يادونه وسوه چي په بېلا بيلو مهالونو کښې د کال لمړۍ ورخ په بېلا بيلو ډولونو او دودونو سره په بېلابيلو سيمو کښې لمانځل کېده، يوه کړنه چي زموږ د هيواد په ټولو سيمو کښې د ګډ دود پتوګه د زياتي مودې را په دېخوا منل سوې وُ هغه په دې ورځو د نيالګيو ايښوول وه چي د هرې سيمې واکمن به هم په ځانګړي دود سره د غونډو د جوړېدو په ترڅ کښې نيالګي ايښوول او د دوی په وړاندې به د ښه روزل سوي ځاروي او الوتونکي چي ډېر به ښايسته سوي وه تېرېده او ځرګندېده. چي د ښې روزنې له امله به ئې ښتنانو ته

مالي ستايني ورکولي کېدې. د پښتنو په سيمو کښې به دا لمانځنې د ډوهلونو او پښتني نڅاوو (اتڼونو) په کېدو سره بو ځای تر سره کېدې. په ټول يول زموږ اولس دغې ورځې ته د خپلو پلرونو او نيکه ګانو پر پلونو د تګ پر بنسټ په درنښت کتلي دي.

دا ورځ او ورسره تړلې مخکنۍ او وروستنۍ څو ورځي ئې په پراخو مېلو او په منو دبې به بشپړه خوښيو سره



نمانځلې دی.

په ځينو ځايونو کښې د دغو مېلو يادونه کوم:

* د پکتيا ولايت د زرملې په ولسوالي کښې د روحاني صاحب پر ډورۍ د اخترونو د مېلو سره سره د پسرلي مېلې هم تودې وې

* په پښتونخوا کښې د پېښور د کاکا صاحب په زيارت کښې پسرلنۍ مېلې ډېرې ښکلې او د ستايني وړ وې چې تر څو اونيو پورې اوږدېږې. همدارنګه

* په لغمان کښې د ميترلام بابا په بڼ کښې.

* په الينګار کښې د نورلام صاحب مېلې

* په فراه کښې د باغ پل

* په هرات کښې د ګازرګاه ـ تخت سفر ـ ګذره ـ انجيل ـ سنګ سپيد ـ امام شش نور

* په خلم کښې د باغ جهان نما

* په کندز کښې د امام منير

* په چاريکار کښې د ارغوان

* په کاپيسا کښې د ريګ روان مېلې د يادوني وړ دي

## د نوي کال د نومړيو ورځو مېلې:

د زياتو کلونو را په دې خوا زموږ په هيواد کښې د لمريز کال لمړۍ ورځ د بزګر د ورځې په نوم نومول سوې ده. په دغه ورځ د لرغوني بلخ، مزارشريف په ښار کښې د شاه ولايت مآب د ډورۍ په انګړ کښې په ځانګړې دود سره د لوړ پوړو چارواکو په ګډون د جنډۍ تر پورته کېدو وروسته د (ګل سُرخ) په نوم لس ورځنۍ مېله پيل کيږي.

د ګل سرخ مېلې او په دې ورځو کښې د خوسۍ ښګندتيا خوشي خبره نه ده، د دې ورځې په اړه زيات څه



د زياتو کسانو لخوا ويل سوي او ليکل سويدي

د (انندراج) په قاموس کښې چې د هند په اريايي مېشته سيمه کښې چاپ سوی وايي: په دغه ورځ د شپې او ورځې برابري انسانانو ته د عدل او انصاف عملي لوست ورکوي

داسي هم ويل کيږي چې جمشيد خلک يزدان پالني ته بللي او هم يې په دې ورځ ګنې په لاس کښې مات سوی او د هغه څخه يې د خوږو اوبو څکل پيل کړيدي.

په (آثار الباقيه) کښې ليکل سوي دي چې: د سليمان ؑ څخه دوې ګوتمۍ چې د پيريانو ـ الوتونکو ـ او اجنه تر لاس لاندې کېده پکښې نغښتي وه، تر ورکېدو وروسته پيدا سوېدي.

د زردشت له انده دا ورځ د (اهورا مزدا) د پیدایښت ورځ ده چې نړۍ یې په ۳۶۵ ورځو کښې پیدا کړېده. او د هر پېر لومړۍ برخې ته نوروز وایې
راځو کندهار ته!

په کندهار کښې د باباولي پسرلنۍ مېلې د یادونې وړ دي د باباولي ډورۍ د ارغنداو د ښکلې او زرغونې ناوې په یوه اړخ کښې پر داسې لوړه پرته ده چې د همدې ښکلې ناوې ټوله پراخه سیمه د هغه ځخه تر سترگو لاندې وي، هلته د طبیعت ټوله ښکلا څرگنده وي. البته دا د وچکالیو دمخه خبره ده چې دا سیمه به د لویو زرغونو ونو په لاړونو پوښل سوې او روانو اوبو به د هغه پر چارچاپېره گښت او پیره کوله، هلته به هر ځای د چایو د پخېدو لوی لوی مسې لوښې پراته او ورسره سایسته ښایسته پغران هوار وه، ځای ځای به هم د خلکو د ناستې دپاره تختونه ایښوول سوي وو چې پر هغه به د کندهار دله دله ځوانان او د



مېلې برخوال ناست وو، تر ونو لاندې به گڼ شمېر مېله وال دلې دلې دلته او هلته راتېول او دا ورځ به یې په خوښیو لمانځله چا به سندرې اورېدې، چا به ولسې لوبې کولې، چا به توکې ټکالې او یا پټې کولې

د بابا ولي سیمه به د خلکو په گڼه گونه ښکلې وه، د خلکو لاړونه به تر همهغه ډورۍ پورې غځېدلې وه، او دې ستانه پیر ته به لاسونه په دوعا وه، سربېره پر خوښیو هلته به ډول ـ ډول دودیزه خواړه هم ډېر کارېدل

تر ټولو به د کاهو تختونه او ورسره مل د سکنجبینو ښیښې زیاتې ښکارېدې په هر ډول په باباولي سر بېره خلک خینو نورو سیمو ته لکه په خاکرېز کښې د شاه آغا سیمې ته او همدارنگه د شیخ قلندر بابا زیارت ته، د گیدړې چینې او مقصود شاه غره ته او همدارنگه د زاړه ښار ښویندوکې غره او د خواجه خضر بڼ او نورو ـ نورو ځایونو ته هم تلل او هلته به ئې په خوښیو او ساتېریو سره دا ورځ د خپلو ملگرو او کورنۍ د غړو تر څنگ تېروله، په هر ډول دا په تېرو کلونو کښې د کال د لمړیو ورځو د لمانځنې یادونه وه چې په هغو کښې لیرې او نژدې مهالونو د لوړو او ژورو یادېده او د ناخوالو او ستونزو رازېرېده خبره اورېدوې راځم اوس مهال او د خلکو پراخو هیلو ته دا چې د پسرلي ښایسته لمر د اُفق د گرالبو څخه د نورو اولسونو تر څنگ پر افغانانو هم د روڼا وزرونه خپاره کړي او د هغه څخه زېرنده ښکلاوو د ښکلا پالو پاملرنه واړولې، وړ ده چې د ټولو لخوا دغه ښکلا د خپل (۲۵) کلن سوځېدلي او شوړېدلي ژوندانه د هر اړخ سره وتړل سي

دا چې د انسان د ژوندانه په بهیر کښې ارزښ لري هغه د هغوی د ژوندانه گټوره لاس ته راوړنه ده، په دې توگه نو بویه مونږ افغانان هم د تېر کال د ژوندانه پاټو ته په کتو سره پر ارزښتناکو اړخونو ټینگار وسي او د زیانمنو اړخونو و پرېښودو ته به ملاوې وتړل سي

هیله لرو ۱۳۸۳ لمریز کال زموږ هیوادوالو ته د لوړو هیلو د تر لاسه کېدو کال وي ټولو ته د ټولو بریالیتوبونو کال وي داسې کال چې د هري ورځې په پایه کښې ئې د اولس د کړو څخه د وياړونو روڼا هسکه سي

په هیواد کښې ملي یو والی په سرتاسري توگه رامنځ ته سي او د ژوندانه په هر اړخ کښې د تلپاتې ملي پخلاینې سره یو ځای د لوړو پرمختگونو او پرمختیاو دپاره پراخ گامونه اوچت سي خو د ژوندانه ـ هره ورځ هره اونۍ ـ هره میاشت او هر کال او د ژوندانه هر پړاو مو پسرلی اوسي.

ما د غلیم د غشي څوکه په سینه ماته کړه
په څنگه تیره مې د څنگه بلا څُله ماته کړه
ستا په فرمان به هر سرې څه نا څه شي ماتاوه
زما په کور کې نور څه نه وو، ما توبه ماته کړه
له لمر لوېدو پس به یې ژبه کړه پر شونډو تېره
په دې شکرو به جانان خپله روژه ماته کړه
**درویش درانی**

عبدالروف حیّار ـ کوټه

# د غضب او شهوت

# په قوتونو کښې اعتدال او مساوات

د غضب او شهوت په قوتونو کښې هم افراط او تفریط بالکل منع دئ، بلکې اعتدال او برابروالی په کار دئ. د اخلاقو د فلسفې پوهان په دې حقیقت پوهیږي چې د انسان د ټولو اخلاقو بنسټ پر دوو قوتونو ولاړ دئ، چې یو عبارت د غضب د قوت او بل د شهوت د قوت څخه دي. غضب د هغه قوت نوم دئ چې انسان د دغه قوت په ذریعه د خپل ځان څخه د هغو شیانو مدافعه کوي چې د ده د طبیعت سره برابر نه وي. پاته چې شهوت سو هغه بیا د نفس او ځان د خوښو شیانو د لاسته راوستلو او د دې شیانو د طلب د قوت نوم دئ.

مطلب دا دئ که په دغه دوو قوتونو کښې هر یو د افراط او تفریط مقام ته ورسیږي، فتنه او فساد ځینې تولیدیږي او د ژوند کښتۍ د غرقېدو خواته بیایي او که اعتدال پکښې وساتل سي نو نه یوازې دا چې د غرقېدو بـه یـې وسـاتي، بلکـې د نجات، ترقۍ او خلاصون پر لاره به یې برابر کړي.

د غضب قوت که د افراط او تفریط څخه پاک وي او د عقل په دائره کښې ځای ورکول سي او تر دې دائرې دباندې ونه وزي، نو پـه دې صـورت کښـې د غضـب نـوم شـجاعت ګرځي او دغه شی خانته مختلف شکلونه او راز ـ راز نومونـه غوره کوي لکه خـود داري، زړه ورتیـا، آزادي، حـق ویـل، حق نه پټول، لوړ همتي، زغـم، برداشـت، اسـتقلال، ثابـت قدمي، وقـار، صـبر او سـکون، حـق غوښتنـه، زیار کښنـه او کوښښ، سعي او محنت، جهاد او مجاهده

او څه وخت چې دا قـوت د اعتـدال لـه دائـرې څخـه ووزي، د افراط و لور ته ولاړ سي، نو په هغه صورت کښې بیا د همدې قوت څخه ډېرغټ ګناهونه لکه غرور، ظلم، تېری، خودپرستي، تکبر، د نورو سـپک ګڼـل او سـپکاوی، قتـل او وژل او داسې نور ډېر غټ غټ ګناهونه ځنې پیدا کیږي چې انجام یې په آخیره اندازه تباه کوونکی دئ او که همدا قوت د تفریط و لور ته ولاړ سي، نو تاسي به ووینی چې د دې قـوت څخه به ټیټوالی، کم حوصلګي، بې طاقتي، بېره، بې غیرتي، بې همتي او داسې نور ډېر رذیله او بې خونـده خویونـه پیـدا کیږي، همدغه راز څه وخت چې د شهوت پـه وخـت کښـې کامل اعتدال موجود وي نو دې اعتدال ته په اصطلاح کښـې عفت ویل کیږي او همدا صفت پـه مختلفـو صـورتونو کښـې مختلـف نومونـه او ډولونـه اختیـاروي لکـه پاکـدامني، پرهیزګـاري، شـرم او حیـاء، صـبر او شـکر، قناعـت او بـې طمعي، د کورنیو خوشحالیو مناسبه غوښتنه او داسې نور ډېر ښه خویونه

او څه وخت چې دا صفت د افراط او تفـریط و لـور تـه میلان وکړي نو تاسي به ووینـی چـې د دې څخـه حـرص او طمع، بې شرمي او بې باکي، بد خرڅي او بې غیرتي، ربا او بد اخلاقي، حسد او چاپلوسي او داسې نور بې خونده او ډېر بې غیرته صفتونه ځیني پیدا کیږي

په دنیا کښې عمل او هنر، خوشحالي او عزت، پرمختګ او ترقي، جد و جهد او مجاهده دا هر څه چې دي د همـدې دوو قوتونو پلوشې او وړانګې دي، که دا دواړه قوتونه بیخـي محوه او له منځه یوړل سـي او یـا پـه دوی کښـې افـراط او تفریط را پیـدا سـي، نـو پـه دې صـورت کښـې بـه د نېکـی، سعادت، نیکمرغی، خوشبختی او خوشحالی‌نیمه دنیا مـړه او فنا سي، په دې صورتو کښې به نه د عفت کوم مفهوم پاته سي او نه به د امن او امان کومه بخښه، نه به د چا مال محفوظ پاته سي او نه به د چا سر سلامت، همدارنګه نه بـه د انسان د لـوړ همتی، استقلال، ثابت قدمی، سـعی او عمـل کـوم جـوهر څرګند سي، بلکې د نړۍ د ترقۍ نظام به ګډوډ سي او دا هر څه به وران ویجار سي او هیڅ شی به د جنـبش او حرکـت و لور ته ولاړ نه سي بلکې هر څه به ساکن پاته سي

اسلام دغه دواړه قوتونه بیخي محـوه کـول نـه غـواړي بلکې په دغو دواړو قوتونو کښې د افراط او تفریط څخه ګرکه لري او غواړي چې د دغو دوو قوتونو په مـنځ کښـې اعتـدال وساتل سي، په اسلام کښې دغه دواړه قوتونه په خپل ځـای او ذات کښې بد نه دي، بلکې کله کله د دوی د استعمال موقـع او محل بد وي. د اسلام تعلیم دا نه دئ چې خپل د غضـب

قوت بیخي محوه او فنا کړي. بلکي اسلام د قهر او غضب د زعمونکو ستاینه کړې ده، د محوه کوونکو ستاینه یې نه ده کړې. الله ﷻ په سورة آل عمران کښې فرمايي والکاظمين الغيظ و العافين عن الناس والله يحب المحسنين (سورة آل عمران آيت ۱۳۴)

ژباړه: او چې زغمونکي د قهر دي (سره له قدرته) او عفوه کوونکي دي خلکو ته (چې ظلم او زیاتی پر وکړل سي) او الله ﷻ د هغو کسانو سره چې ښه کارونه کوي (ډېره) مینه لري

یعني پاک خدای ﷻ والکاظمين الغيظ فرمایلی دی، والفاقدين الغيظ یې نه دی فرمایلی او نه یې د شهوت په هکله ویلي دي چې خپل شهواني قوت ختم کړئ مجرد ژوند وکړئ او د مفلسۍ او خوارۍ په غمونو لړلی ژوند تېر کړئ، بلکي ویلي یې دي چې د خدای ﷻ د حلالو او پاکو شیانو څخه خوند واخلئ لیکن د شریعت د ټاکلو حدودو څخه مه تېرېږئ

ژباړه: اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړئ دئ یعني اې مؤمنانو مه حراموئ تاسي پاک لذیذ له هغو شیانو څخه چې حلال کړي دي الله ﷻ لپاره ستاسي او مه کوئ تېری تاسي (له حدودو د الله ﷻ) بې شکه چې الله ﷻ نه خوښوي تېرېدونکي له حدودو څخه (سورة المائدة آيت ۸۷)

## انتظار

لا مې اوس هم سترګې سرې له انتظاره
لا اوس هم یمه ولاړه ستا په لاره
لا مې اوس هم ستا د مینې کور په زړه دی
لا اوس هم یمه بې تابه ناکراره
لا مې اوس هم ستا په یاد خیالونه ناځي
لا اوس هم یمه پیمان ته وفاداره
لا مې اوس هم د خوار زړه هیلې ژوندۍ دي
لا اوس هم یمه وتاته تمه داره
لا مې اوس هم لېمه ستا په درکې ښخې
لا اوس هم یمه مېشته ستا په دیاره
لا مې اوس هم روح د غم سره همراز دی
لا اوس هم یمه په زړه بانډي داغداره
لا مې اوس هم ستا د یاد سلسلې خیال دي
لا اوس هم یم منتظره ستا لپاره

پروین فیض زاده ملال

پسرلی په لنډیو کښي :

## پسرلی

پسرلی بیا پر وطن راغی
زرغونوي ښکلي درې او چمنونه
پسرلی راغی ګلان ډېر سول
د اوربل ګل به خپل آشنا لره وروړمه
خاونده ! بیا ته پسرلی کړې
چې په خیالي ګلونو وسي بارانونه
د پسرلي د ګل په شاني
داسي مي زړه درېسي پاني پاني سونه
د پسرلي غم ښادي یو دئ
ګل په خندا دئ آسمان اوښکي تویوینه
پسرلی راغی وني شنې سوې
زما ناښاد زړګوتی واوري اوروینه
خاونده ! ژر یې پسرلی کړې
چې هلکان او تجوني ګډ ګلو ته ځینه
بهار بې یاره ټول خزان دئ
په بېلتانه کښي هر ګل خار د سترګو وینه
د پسرلي تر ګل تازه وم
ستا د بېلتون په غم کي ژړه پاڼه سومه
د پسرلي هوا لګیږي
ستا د پیکي نسیم مي زړه تازه کوینه
د پسرلي لوونه ګډ سوه
نجلۍ په سرو منګلو وږي ټولوینه
د پسرلي باد را الوتی
د یار د لوري د یار بوی راته راوړینه
د پسرلي په راتلو پوه سوم
نجونو راوړه په اوربل کي ژړ ګلونه
د پسرلي په میاشت دي مرګ سه
شناخته دي ګل سه چې عالم یې بویوینه
ګل په لاس درته ولاړ یم
یا مي ګل واخله یا رخصت راکه چې ځمه؟

ژبارن : عبدالتواب "بالاکرزی"

# د حضرت محمد ﷺ مبارکه

**خرقه مبارکه د کابل په علي آباد کښي**

خرقه مبارکه د ۱۱۰۹ سپوږمیز کـال څخـه تـر ۱۱۸۲ سپوږمیز کال پوري د (۷۳) کلونو لپاره د بدخشان پـه فـیض آباد کښي خپل نور او برکتونه اورول. دا هغه وخت و چـي د اوسني افغانستان بنسټ د افغـان سـتر ټولـواک اعلیحضـرت احمدشاه بابا له خوا کښېښودل سو، او ورځ په ورځ د افغـاني امپراطورۍ د سمون لپاره کـار کېـدی او هڅـه کېدلـه چـي افغانستان باید د ملي یو والي پر بنسټ یو غښتلی دولت ولري.

د دې کار لپاره هري خواته تکـړه، غښتلـي او پـر وطـن مین خلک واستول سول، تر څو ملک سره راټول او یو موټی کړي چي په دې لړ کښي زمـوږ د ګـران هیـواد افغانسـتان د شمالي ولایتونو د اداري، نظـامي او سیاسـي چـارو د سـمون لپاره په کال ۱۱۶۳ سپوږمیز کال کښي چي د ۱۱۲۹ لمریز سره سمون لري مخلص خان "درانـي پـوپلزي" واسـتول سـو چي نوموړي وکولای سوای چي د پنځو کلونو په موده کښي نوموړي چاري د سمون په لور برابري کړي.

څرنګه چي دا مبارک اثر پوازي د خرقې مبارکي په باب لیکل سویدی نو د ډېرو داسي مسئلو څخه چـي د هغـه بیـان موږ د موضوع څخه لیري کوي سترګي پټوو، او راځو خپلې اصلي موضوع ته.

دا چي مخکي مو ولوستل چي خرقه مبارکه د آنحضرت ﷺ تر رحلت وروسته و حضرت اویس بن العـامر القرنـي تـه د رسول اکرم ﷺ د وصیت پر بنسټ ورکړل سوه، او د حضـرت اویس بن العامر القرني تـر وفـات وروسـته څـو ځلـي و څـو بېلابېلو خایو ته د بېلا بیلو خلکو په واسطه په درنښت او عـزت سره لېږدول سوېده نو پـه دې وخـت یعنـي ۱۱۸۱ سـپوږمیز کال کښي چي د ۱۱۴۶ لمریز کال سره سمون خوري، کله چي د افغانستان سترټولواک اعلیحضرت احمدشاه بابا و کابل ته راغلی و، او د همدې کال دوبی، منی او ژمي نې هلته تېر کړل، په دې وخت کښـي ځینـي خوځښتونـه او پاڅونونـه د هیواد په شمالي پولو کښي موجود وه او داسي بېـره وه چـي خرقه مبارکه بېځایه او د افغانستان څخه دباندي ته ونـه لېږل سي. دا په داسي حال کښي چي افغان پوځونه په دې وخـت کښي د هیواد په کورني نظم، امنیت او د دبانـدنیو پـاڅونونو او مداخلو د مخنیوي لپاره ډېر سخت لګیا وه.

همهغـه و چـي اعلیحضـرت احمدشـاه بابـا د ۱۱۸۱ سپوږمیز کال د شوال په میاشت کښي چي د ۱۱۴۶ لمریـز کال د کب د میاشتي او ۱۷۶۷ مـیلادي کـال د فبـرورۍ د میاشتي سره سمون درلود، شاهزاده سلیمان خپل دوهم زوی د کندهار څخه کابل ته وروغوښت.

شاهزاده سلېمان د ۱۱۴۷ لمریز کال د غوایي په میاشت کښي کابل تـه ورسـېدی، څـو ورځـي نـې هلتـه تیـري او د ۱۱۴۷ لمریز کال د غبرګولي پـه ۸ مـه نېټـه چـي د ۱۱۸۲ سپوږمیز د محرم الحرام د ۱۱ مي او ۱۷۶۸ میلادي کـال د مي د میاشتي د ۲۵ مي نېټي سره برابره وه د کابـل څخـه د چاریکار په لور چي د پروان ولایت مرکز دئ روان سو. البتـه تر چاریکار پوري اعلیحضرت احمدشاه بابا هم ورسره ملګـری و وروسته د جوزا پر لسمه د سـردار شـاه ولـي خـان اعتمـاد الدوله په مشري ئې نور پوځونه د شمالي ولایتونـو د لا تنظـیم دپاره واستول او په خپله د چاریکار څخه بېرته راستون سو. او د همدې کـال د چنګـاښ پـه میاشـت کښـي چـي د ۱۱۸۲ سپوږمیز کال د صفر المظفر د میاشتي سره سمون درلـود لـه کابل څخه فرمان صادر کړ، چي د آنحضرت ﷺ مبارکه خرقـه دې په ډېر درنښت، عزت او درناوي سره کابل ته راوړه سي.

سردار شاه ولیخان چي په دې وخت کښي بدخشـان تـر خپلي ولکي لاندي راوستی و د فرمـان پـه رسـېدو سـره نـې مبارکه خرقه په ډېر عـزت، شـرف او درنښـت سـره کابـل تـه ولېږدول.

د دې سره هممهاله (۶۰۰۰) نور پوځیان د کندهار څخه د هرات او فاریاب لـه لاري د همـدې مقصـد او همـدا راز د



# خرقه په کندهار کښې

شمالي ولايتونو د پولو ساتلو او تنظيم لپاره لېږدول سوي وه. احمدشاه بابا و هغه پوخ ته چې کندهار د لاري راغلي وو، امر وکړ چې د مروي د رود څخه تېر سي او هغه ځايونه چې مورد نظر وي ټينګ او نظم ته دې راولي او هغه پوخ چې د کابل د خوا تللی دی هغه دې هم و هغه ځای ته ځان ورسوي

البته چې دغه ټولي هلي ځلي په ملک کښې د امن راوستلو او د هيواد د پولو ساتلو د دباندني يرغلونو په وړاندي وې[1] د سلطاني تاريخ په قول چې هغه د ابدالي تاريخ له رسالې څخه نقل کوي، وايي چې په آخري شپه د خرقې شريفې متوليانو د نوموړي مبارکي خرقې دوه لستوڼي پرې او د آهن درې د لاري و بخارا ته وتښتېده، دا په داسې حال کښې چې احمدشاه بابا نوموړي متوليان د مهرباني او شفقت له رويه د خرقې مباركي سره د بدخشان څخه و اشرف البلاد ته لېږدول او هغوي ته ئې د ډېر درنښت په کتلو سره ـ سره ځای هم ورکاوه.

کله چې خرقه مبارکه د فيض آباد څخه کابل ته راوړل سوه احتراماً مناسبه وګڼل سوه چې د ښار د حصار(۱) څخه دباندي په يو پاک او منزه ځای کښې د غره په لمن کښې دي کښېښوول سي

چې د دې کار لپاره د کابل و شمال لوېديز ته د علي آباد دښت (د کابل پوهنتون او د کرهڼې او مالداری وزارت) وټاکل سوه، په دې ځای کښې د هغو عسکرو لپاره چې د خرقې مبارکې سره د بدخشان څخه راغلي وه خيمې ودرول سوې، دا ټوله هغه تکړه او غښتلي عسکر وو چې د احمدشاهي امپراطورۍ په ټولو جګړو او لښکرکښيو کښې برخه اخيستې وه او ټول پاک، متدين او جنګيالي ځوانان وو.

هغه ځای چې مبارکه خرقه پر هغه باندې د کابل او شاوخوا سيمو خلکو د زيارت کولو لپاره ايښوول سوې وه، چې په وروسته کښې دا ځای د سخي شاه مردان په نامه ونومول سو د علي آباد کلا او شاوخوا مځکې د وزير شاه وليخان په ملکيت پوري اړه درلوده چې نوموړی ځای او جايداد تر ډېره وخته د نوموړي د وارثانو په ولکه کښې وه

**علي اباد**

د خرقې مبارکي لومړنی مقام په کابل کښې

علي اباد د کابل ولايت د څلوارلسمي سيمي و شمال ختيځ لوري ته د غره په لمن کښې يوه پرته سيمه ده چې د اوسني کابل پوهنتون، کرهڼي او مالداری وزارت او ځيني نور دولتي تاسيسات او زيات شمېر د عامه خلکو د استوګني کورونه پکښي جوړ سويدي. کله چې د لومړي ځل لپاره مبارکه خرقه د فيض آباد څخه و دې ځای ته راوړل سوه ډېر زيارت کوونکي د کابل او شاوخوا سيمو څخه ورته راتلل او د ورځي په جريان کښي به يې خرقه مبارکه د يوې ډبري پر سر چې په منځ کښي يې سوری درلود ايښودل او خلک به تر هغه سوري وتل.

کله چې خرقه مبارکه د کابل څخه و کندهار ته راوړل سوه لکه څرنګه چې په پخوا کښي د هغې ځای يې په سمرقند کښي د شاه مردان زيارت ونوماوه، همدا راز په کابل کښي يې هم د هغې ځای د شاه مردان زيارت و نوماوه، او په ۱۱۸۷ سپوږميز کال کښي يو د اوبو ځا ورته وکښل سو او د توت درختي ورته کښېښودل سوې او د زيارت لوېديزي خوا د شاه مردان په چمن شهرت وموند.

څرنګه چې خرقه مبارکه د فيض آباد څخه و کابل ته د سردار شاوليخان اعتماد الدوله په توسط راوړل سوه او هم د علي آباد د سيمي کارېز او چارچاپېره مځکي او باغونه د ده ملکيت وو نو د شاه مردان د زيارت د متوليانو لپاره د استوګني کورونه هم د ده په توسط جوړ سول چې وروسته بيا د افغانستان د بشپړي خپلواکۍ د لاسته (پاته په (۴) مخ کي)

نذیر احمد "تایي"

# پښتني متلونه په شعر کښې

## دوهمه برخه

پښتو شاعرانو دېوانونه ترتیب کړي نو له هماغه وختـه دغـه صنعتونه پکښې ځای سویدي چې له بدغه مرغه د هغـو لرغونـو دورو دېوانونه لاس ته نـه دي راغلـي، یـوازې او یـوازې شـعري ممتـازې نمونې یې په لاس کښې سته، او د خوشحال خان د زمانې دېوانونـه خو بې شمېره دي چې زیات ادبي صنعتونه پکښې موندلای سو

د همدې خبرې بـه مثال یې زموږ دغه مواد دي چې د متلونو راوړلو (ارسال المثل ـ مدعا مثـل) صـنعت یـې بـولي چـې د دغـه صنعت زیات مثالونه د خوشحال خان په دېوان کښې موندل کېږي. او نورو عنتلو شاعرانو یه ښه توګه برخې پکښې اخیستي دي. نـو دا دي د پښتو د پخوانیـو دېوانونـو خاونـدانو شېروښـت تنـو نومیـالیو شاعرانو خوشحال خان خټک، احمدشاه بابا، معـزالله، میرزاخـان انصاري، حسین، یونس، سعید، میرزا حنان، حمید مومنـد، اشـرف خان هجري، شـمس الـدین کـاکړ، بیـدل، کامګـار خـان خټـک، قادرخـان خټـک، قلنـدر اپرېـدی، علـی خـان، پیرمحمـد کـاکړ، عبـدالعظیم رانیـزی، خواجـه محمـد بـنګښ، جمعـه بـارکزی، حبیب الله، صدیق، مسری خان ګګیاني، کاظم خان شیدا، او دولت لواني په دېوانونو کښې د متلو راوړلو صنعت څېـړل سـوی، لټـول سوی او متلونه یې را ایستل سویدي، چـې د ادب مینـانو تـه یـې پـه مینـه وړانـدې کـوم د دغـه صـنعت لټولـو او را ایسـتلو لـړ تـر لـږه شل کالـه ونیـول خکـه چـې پـه دې مـوده کښـې چـې هـر څونـه چاپي دېوانونه مې لاس ته راتلل او لا پسې چاپېدل نو په کـرار کـرار او سړه سینه به مې کتل تر څو د همدغو شـاعرانو لـه دېوانـو څخـه مې متلونه منظم او د هر متل سره برابر بیتونه مـې تـر ممکنـه حـده ترتیب کړل

په دې څېړنه کښې د هر شاعر ټول ارسال المثلونـه او مـدعا و مثلونه (متلونه) د دې لپاره راوړل سوي چې کـه د چـا د کـوم یـوه شاعر د دېوان د متلونو ټولې نمونې په کار وي نو زما په دغـه څېړنـه کښې یې په اسانۍ موندلای سي او جلا څېړنې ته به یې اړه نـه پیـدا کېږي د دغې څېړنې په وخت کښې د متل موندل بیا همهغـه بیـت ورسره تطبیقول او د ټولو شاعرانو ورسره ټول بیتونه وراچول ګران کار و خو ما خپله وسه وکړه

دلته دا خبره زه پخپله هم کوم چې تېروتني به راڅخـه سـوې وي ځیني اصطلاحات به راڅخه د متل په ډله کښې تېـر سـوي وي، ځیني بیتونه به هم په خپل پوره او سم ځای کښې نـه وي راغلـي، د ځینو لپاره به مې اوس هماغه مناسب متل نه وي پیـدا کـړی داسـې وړې. غټې خبرې به نورې هم وي خو سره د دغو ټولو خبرو زه دغه رساله د ادب څېړونکو او مینانو ته وړاندې کوم

په دې څېړنه کښې د نوموړو شاعرانو پر دېوانو برسېره د ځینـو آثارو څخه چې متلونه پکښې ضبط دي پوره استفاده سوېده چې هغه دا دي

پښتو متلونه د محمد ګل نوري اثر
پښتو متلونه د څېړنمل محمد دین ژواک په اهتمام
پښتو متلونه (دري انګلیسـي ژبـاړه) د عبدالمحمـد (شـینواري) ژباړه
د پښتو متلونو ټولونه او تحلیل د (تارن بارن) ژباړه او بیا لیکنه د شیرمحمد کریمي
ضرب المثل های مشهور د شوروي اتحاد چاپ

په هغه متلونو کښې چې (پ) لیکـل سـوې نـو هغـه د (پښـتو ملتونو) مخفف دئ

(۱) متل -
له بدو څخه یا غلی اوسه یا لیري اوسه

بد سړی که په ظاهر سړی لیده سي
په باطن کښې نور څه نه دئ مار لړم دئ
(خوشحال)

له بدانو چې صحبت که
پر خپل خان لوی قباحت کا
(کامګار)

د بدانو صحبت اور دئ
چې سوخته کلي محلت که
(کامګار)

د بدانو له صحبته حذر بویه
نور د نمر له ذره ابره مکدر سي
(کامګار)

(۲) متل -
اوښ نه په بډه کېږي
(ب) ټول اوښ پسې په بډه کړ
(ج) پیل په لستوني کښې پټوي

*ارواښاد استاد عبدالروف بېنوا*

# نوی ژوندون

د طبیعت پسرلی خو راغی، د موسم تحول جهان ته نوی رنګ وباخښه، د نشوونما فعالیت هم خپل وزرونه خپاره کړه، زوړ کال نوی سو خو دا چې د نوي کال سره به زوړ ژوندون هم نوی سي او د نوي ژوندون د پسرلي وږمه به هم خپره سي که نه؟ معلومه نه ده!!



وایي چې هر پسرلی د خانه سره د نوي ژوندون زیری لري، دا زېری په زړونو کښي د آرزو درد ویښوي، او دا درد د نا امیدۍ خزان وهلې غوټۍ سپړي او ور خني د مسرت او اطمینان ګل پیدا کوي، خو دا چې د نوي ژوندون دا زېری به د زاړه ژوندون د خاوندانو تر کوره هم ورسېږي که نه؟ د سوځوونکي انتظار خبره ده!!

مګر څونه د افسوس خای به وي چې د نوي ژوندون د پسرلي وږمه وچلیږي خو د زاړه ژوندون د خاوندانو د آرزوګانو خزان وهلې غوټۍ همغه شان د نا امیدۍ په سړو اهونو کښي ناغوړېدلې پاته سي ...؟

زوړ ژوندون د نوي کال په غیږ کښي داسي ښکاري لکه زړې بوډۍ ښځي ته چې د زلمۍ ناوي کالي واغوستل سي او د ناوي پسول او ګېڼه وربوري کړه سي، خو هغه بوډۍ که په هنداره کښي وګوري پر خان به وخاندي، مګر د زاړه ژوندون خاوندان خندلای نه سي، ځکه چې خندا هم د نوي ژوندون ښه ده، بلکي لکه زلمۍ ناوې چې د بوډا مېړه په زېړه پوري خاندي، نوی ژوندون به هم دا شان د زاړه ژوندون په خاوندانو پوري وخاندي ... !

نو ښه به دا وي چې دمخه تر هغه چې نوی ژوندون د زاړه ژوندون په خاوندانو پوري وخاندي، د زاړه ژوندون خاوندان پر خپل زاړه ژوندون وخاندي او پخپله خندا د خپل نوي ژوندون د پسرلي وږمه په نڅا راولي، او د خپلو آرزوګانو غوټۍ وسپړي چې له هغې نه د خپل راتلونکي مسرت او اطمینان ګل پیدا کړي، که نه وي افسوس دي وي د هغه چا پر حال چې کال نوی سي او د ده ژوندون زوړ وي.

یا نوی کال د نوي ژوندون آرزوګاني راوړي، خو د ده زړې آرزوګاني لا هم خاوري سوي وي !!!

**د ژوندون پسرلی شباب دئ**
**د شباب پسرلی مستي ده**
**د مستۍ موج حرکت دئ**
**حرکت د ژوندون هستي ده**
**د هستۍ پسرلی بدلون دئ**
**بدلون تل نوی ژوندون دئ**
**نوی ژوند د ژوند اساس دئ**
**بې اساسه ژوند نیستي ده.**

# هنر او ادب




## شبنم دانه

د شبنم دانه که تخم سي د ګلو
زړه به سوړ د دیدن نسي د بلبلو
چي يې نسته لکه ګل ښه رخسارونه
څوک به څه کا توري زلفي د سنبلو
حال د سوي طالع څه بیان کړم چاته ؟
له خمر زما جبین دئ د ښاغلو
معطل په عارضه د شام غریب دئ
که مي زړه په حلقه بند سو د کاکلو
د آسمان په شان يې تېز د فتنو تېغ کړ
صبح و شام ګرزي ښکاره په سرو منګلو
د دریاب د سرد جوشۍ د حباب زړه چوي
"شیدا" قطع دي امید بویه له خپلو

کاظم خان "شیدا"

## څلوریځه

چهره د ګل سوه شمع افروزه !
بلبل چغار کا له درده سوزه !
چي په موسم دي خوبان هوس کا
تر هوا، چار سم ستا نوروزه !

پیرمحمد کاکړ

اروانباد استاد بېنوا

## د بهار ګل

بیا نثار د رنګ اوبو کا د بهار ګل
وړمې لوني و هر لور ته د کهسار ګل
د ریدي غوټۍ پر شونډو موسکا ناځي
چي را وینې سو د بلبلو په چغار ګل
چي د شپې يې د شبنم ژړا کړه خپله
خکه ډکه خوله خندا کړي د سهار ګل
چي په خپلو وینو ولمبېده هله
سرخرويي سوله په برخه د انار ګل
خیامي جام کي که عزم د خلیل وي
د نمرود لمبې به هم سي د ګلزار ګل
محتسبه ! له رندانو لیري ګرځه
د ساقي سترګي بیا سرې سوې د ګلنار ګل
جګېدو باندي تش، څوک نه ستري کېږي
چا لیدلی دئ په سر کي د چنار ګل
د نیمګړي نیت باغوان په سلګو ژاړي
چي له واکه يې بهر سو لاله زار ګل
تورپیکی ولېږداوه کاروان د مشکو
چي اوربل کي څنګ پر څنګ زانګي قطار ګل
ګوندي وي چي يې په زړه کي ور په یاد سم
د یار غېږي ته مي ولېږه رويبار ګل



موسم بدل دی ښایي تللي مرغان بیرته راسي
و خپل وطن ته د کډوالو کاروان بیرته راسي
ستا ولونه ولونه زلفي وبسم له خپله خیاله
یو ساعت پس که گورم دغه ماران بیرته راسي
بیلتونه ! دا حل دي نو عمر دومره لنډه سه چي زه
په لمن اوښکي وچوم او جانان بیرته راسي

**درویش درانی**

احمد صمیم

## وصیت

کفن مي د گلانو د نازکو پاڼو جوړ کئ
په اوښکو د مینو مي د غسل چاره وکئ
د مستو لېونیو پر اوږو جنازه یوسئ
هوښیار مي هدیره کي په خنداوو مسخره کئ
و سر ته د لحد مي د سرو میو کوزې کښېږدئ
جولې وهلی تږی ښه پرېمانه پر اوبه کئ
د قبر په تکیه کي مي د غم سازونه سر کئ
پر شنخته د تربت مي په سرو وینو نوشته کئ
چي دا د یو ناکامه غمخپلي "صمیم" گور دی
پر لور د میکدې مي د مزار جنډه کږه کئ

محمد ایوب "فرهت" ـ ننگرهار

## غزل

چي یو غم پسي بل غم سي څکه ماته ژړا راسي
سترگي ډکي مي له نم سي څکه ماته ژړا راسي
ماشومان سي~~ستا~~ یادونه. رڼا ورځ کي ستوري غواړي
مرور رانه لا هم سي. څکه ماته ژړا راسي
د امید غوټی مي واړه د سپرلي په تمه ـ تمه
خو سپرلی مي چیري تم سي. څکه ماته ژړا راسي
صبر دلته صبر هاغه بس جانانه پوره نه سود
دا چي صبر دم په دم سي څکه ماته ژړا راسي
امتحان د میني راغی که زما زړگی نری سو
یا غزلي زیر و بم سي. څکه ماته ژړا راسي
خوب کي گورمه ملگرو ! د اجل غشي وریږي
چي "فرهت" له ډلي کم سي. څکه ماته ژړا راسي

اروانباد لوی استاد علامه پوهاند حبیبي

## د پسرلي پیغام

بهار بیا زرغون هیواد کړ    د غمجنو زړېي ښاد کړ
هغه بڼ چي سپېره ډاگ و    په گلونو یې آباد کړ



بلبل راغی بیرته کورته    زرغون باغ د گلو لور ته
بیا د عشق سندري لولي    ښور یې جوړ کړ کښېنته پورته



زه هم ورغلمه باغ له    د زېړي گلو سراغ له
شاوخوا، خندا د گلو    رایحې راتلې دماغ له



د بلبلو ښور ماښور و    بل د عشق په نغري اور و
ما هم غوږ ورته نیولی    شخول یې هري خواته خپور و



هسي اروم له بلبله :    وایي : "اې خندانه گله !
مني ستا قدر ځرگند کړ    موږ آشنا یو، یو له بله



چي خزان نه وي بهار څه؟    که سوراږ نه وي گلزار څه؟
رڼ هم په تیاره ښکاري    که شپه نه وي نو سهار څه؟



غوږ له راغله دا خبره    چي بلبل وي په سندره
ډېرد ښه او قیمتي وه    لکه رونه مرغلره



رشتیا دا ده چي خزان    سړی کاندي قدردان !
د بهار د ښکلو گلو !    د گلشن او د بوستان



ملت هم داسي دی . گله !    څو زمولتیا حس نه کړي خپله
په خوږتوب خپل خبر نسي    نهضت نه مومي هیڅکله



څوک چي خپي پر سمه لار    پوه دي سي په دغه کار
د "زمولتیا احساس بها ردی"    دا پیغام دی د بهار



چي یې ولید ستا حسن بې حساب
له دې قصده تاو پیدا سو د آفتاب
په آرزو دي د نرگس سترگي څلور سوې
غنچه سره د زړه په وینو سوه غرقاب

جمعه ګل ارمانجن

# نوی کال او نوي هیلي !

دا چې په دې ورځو کښي ۱۳۸۲ لمریز کال پای ته رسیږي، او نوی ۱۳۸۳ لمریز کال د راتلو په حال کښي دئ نو موږ ته ښایي چې د نوي کال لپاره نوي هیلي او آرزوګاني د ځان، خپلي کورنۍ او هیواد لپاره د ځان سره ولرو

هو لومړی باید د تیر کال کړو وړو ته کتنه وسي چې په تیر کال کښي مو څه وکړل؟ څه مو باید کړي وای؟ دا سوالونه د ځان، چاپیریال او هیواد په لمن کښي په پراخه توګه مطالعه سي هر انسان ته ضرور ده چې د تیر وخت کارو ته کتنه وکړي، مثبت او منفي نتیجه د ورځي، اونۍ، میاشتي او کال په پای کښي تر نظر تیره کړي، د هیواد چارواکي د خپل دفتر، هیواد. د پلانونو د اجرااتو او اجراء سویو کارو نتیجه ګیري وکړي لکه څنګه چې ملګري ملتونه په خپل کلني راپور کښي د هیوادونو نړیوالي ناخوالي او د بشري حقوقو څخه سرغړونه او جنایتونه په نړۍ واله کچه څیړي

که د ځان او خپلي کورنۍ او هیواد د تیر کال د ښو کارو یادونه د خپل ځان او کورنۍ او دولت پریکړو ته پریږدو چې موږ څه وکړل؟ څه مو باید نه وي کړي؟

اوس به راسو دې ته چې په دې کال کښي څه هیلي لرو؟ خو د نوي کال په رارسیدو سره هر زړه سواند او په خپل هیواد او هیوادوالو مین او د ټولني منور کسان د ځان او هیواد لپاره په زړه کښي ښې هیلي لري چې دا هیلي یوازي د روڼ اندو، علماوو او دولتي چارواکو سره نه دي، بلکي د هر هیوادوال که څه هم هغه د لوړو غرو میشته کوچی او شپون او د زیارتونو او کنډوالو ملنګ او د غریبو او سوالګرو بوډا او د شتمنیو لوی بډای هم وي هغوی همدغه غوښتني او هیلي لري چې:

۱. په ټول هیواد کښي ملي یو والی ټینګ ټول د مساوي حقوقو څښتنان سي، او یو پر بل په یوه او بل نامه بر تري ونه غواړي.
۲. د ټولني څخه فسق، فساد او د رشوت لمن ټوله سي
۳. د ملي اردو په جوړښت کښي په اخلاص قدمونه واخستل سي نه د خپلوۍ پر اړیکو
۴. د پخواني تنظیمي قومي، ستمي، ژبنیو دښمنیو او تعصبونو لمن د هیواد څخه ټوله سي تر څو ټول هیوادوال د یوه افغان په نامه پر یوه غولي سره راټول سي
۵. نیمه فدرالي خپلواکي چې په ځینو ولایاتو او سیمو کښي جوړي سوي، قدرت تري واخیستل سي. د نوي اساسي قانون په چوکاټ کښي مرکزي دولت ته غاړه کښیږدي
۶. د مقام او موقف څخه شخصي ګټي وانه خیستل سي
۷. د هیواد د پرمختګ پلانونه بېله خنډه یو په بل پسي عملي سي
۸. د هیواد معارف ته په مرکز او کلیو کښي ځانګړې پاملرنه وسي
۹. کار و اهل کار ته وسپارل سي، د خپلوۍ پالیسي ریښې په دفتر او اداره کښي غوځي سي، په شخصي ژوند (په کور او کلي) کښي دا ریښې پیاوړې او غښتلي سي
۱۰. د کلیو او باندو او دښتو اوسیدونکیو ته د مرکزونو په شان د ژوند شرایط برابر سي.

دا دي نوي کال ته د هیواد والو هیلي چې په بشپړیدو کښي ئې هر یو هیوادوال غټ مسئولیت لري.

**ځوک چې خپلي هیلي د تنخاه اخیستلو لپاره قربان کړي، ښایي له لوړي مړ سي.**

فرانکلن

# بست د پیاوړو فرهنګي هڅو لور

عبدالمجید بابی

**د ۱۳۸۳ لمریز کال د کب پر ۲۸ مه د ۵ شنبې په ورځ د هلمند په لرغوني ولایت کښي د بست د فرهنګي ټولني د جوړېدو په پرانستونکې غونډه کښي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس ښاغلي عبدالمجید (بابي) په زړه پوري وینا وکړه چي بشپړ متن ئې ښاغلو لوستونکو ته په لاندي کرښو کښي وړاندي کیږي.**

**اداره**

د بست د لرغوني او تاریخي ټاټوبي درنو چارواکو، پتمنو ښوونکو، استادانو، زده کړیانو، د درنښت وړ شاعرانو، ادیبانو د شعر او ادب د ښکلي انګړ مینه والو، او د دې پتمني سیمي پتمنو اوسېدونکو !

درنو وروڼو او خویندو !

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته !

ځان ډېر خوښ ګڼم چي د لرغونو لیکوالانو په وینا د اتلانو، شتمنو او سوداګرو په لرغونې مېنه کښي چي په همهغه مهالونو کښي لا د پوهي او هنر ور ګټل سوی د یوې فرهنګي ټولني د ډېوې د بلېدو او ځلېدو په غونډه کښي برخه لرم د دغه ډیوې څخه د خپرې روښنایې په همدې روښانه غونډه کښي د برخي اخیستني څخه په وياړ يادونه کوم او تر هر څه دمخه ستاسو درنو وروڼو او د بُست د فرهنګي ټولني د مشرانو او غړو څخه د بلني له امله مننه کوم او ورسره جوخت د کندهار ولایت د درانه مقام ـ د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د منسوبینو د همدې ولایت د فرهنګي شورا او د خپل خان د لوري تاسو ټولو ته د همدې فرهنګي ټولني د راټوکېدني او د لمړنۍ پرانستونکي ناستي د بریالۍ راغونډېدني خوښاوي یا مبارکیاني وایم هیله کوم دا فرهنګي ټولنه د بُست د لرغوني نوم په برکت تر پایه همهغسي بریالۍ وي لکه بُست چي د کړکېښ په بېلا بیلو پړاوونو کښي په لوړ سر ـ استېدلي او اوسېدلي دي، د ټولو هغو کسانو څخه چي د دې ټولني د سکښت او جوړښت لپاره ئې زیارونه او هڅي په مخه کړي دي خوښنه او مننه کوم لوی څښتن دي وکړي چي دا درنې ولولې نوري هم پیاوړي او غښتلي سي څو د دې ټولنې و لا ځلښت او خوځښت ته لاره هواره سي او په دې توګه د خپلو ځانونو په ژوندي ساتلو سره د خپلو

اتلو نیکه ګانو او پلرونو نومونه او ویاړلي کارنامې بیا را ژوندۍ او څرګندې کړل سي او د پرله پسې پاملرنې او زيار ایستنې په زور د بست کنډوالې . د داور ودانۍ او د سروان سوځلي کلاوې بیا روغې ، جوړې او روښانه وګرځول سي . څو دلته بیا د ارم بڼونه جوړ سي او دا ځل د نیکه ګانو غوندې ستاسو په پاړکو کښې وسنایل سي . لکه د پښتون واکمن لوړ درشل غیاث الدین غوري د مهال يوه لوړ پاړکیوال تایمني چې د ارم بڼ دا ډول ستایلی دی:

ما د داور په مځکه ولید ارم

دا د جنت په څېر و بڼ ښه خرم

هو ! د هغه ستاینو تر څنګ همدغه زمینداور بیا ستاسو د مټو په زور زینداور سي . او دا وځېرل سي چې زینداور ولې په لوی لاس زمینداور سوی او زموږ او ستاسو په خولو کښې اچول سوی او مخته په پرتو پاپو کښې راته لیکل سوي دي . یوازې زموږ په وړاندې زینداور نه دی پروت دلته د بست څخه لښکرګاه او بیا د لښکرګاه څخه نوې او زړه لښکرګاه راوتلې او د دواړو او درو واړو څخه بیا د ایلمن پر خاې هلمند جوړ سوی او خدای ښه پوهېږي چې د هلمند څخه به بیا څه او څه راته جوړ کړي.

درنواو پتمنو وروڼو !

د لوی کندهار او د بست د لرغوني سیمې کرکښې ډېر لرغوني دي . دلته د فرهنګي بتولني جوړېده او راغونډېده نوي خبره نده . دلته د فرهنګي ککریو او لیکنې د سړیو کمی د چا نه په یادېږي . که څوک ایلمن او بست له فرهنګي سړیو خالي ګڼي نو د کرکښې پاڼې دې واړوي چې د ابن حبان بستي څېره و ویني او د هغه د (۵۶) لیکل سوو کتابونو نوم لیک ئې سترګي روښانه کړي.

د بستي شېر نړیوال شهرت ئې ذهن وځلوي ، د ابو احمد بستي نصایح ئې پر نېغه لار رهي کړي ، د ابو الفتح بستي پښتو او عربي پاړکي د هغو په پراخ سمندر کښې د لامبو وهلو د (الف) (ب) لوست ورکړي.

ابو حاتم بستي ، ابوالقاسم بستي ور وښئي چې د ګڼ شمېر تالیفاتو لار څه ډول موندل کیږي او دغه لار يې بیا تر سلیم او اکبر زینداوري ، ابو هاشم سرواني ، او بله نستي پوري څنګه ور وسوي.

خیر د دې سیمو د روښانه فرهنګي اُفق څخه د دښمن پرته نور څوک سترګي نسي پټولای . د دې سیمو د فرهنګي ارزښتونو د لا خلېدو او د مهالونو د دوړو څخه د ټکېدو لپاره وړ ده چې خوانان همت وکړي او پوهي ته د پوهي په لار سم سي . د نیکه ګانو فرهنګي میراثونه بیا روغ او پیوند کړي او تر راتلونکو نسلونو پوري ئې د لاسونو پر خاي زړه پر زړه کړي

په دې درانه پاتوبي کښې د بست کنډوالې اوس هم په خانګړې برم او درنښت سره ولاړې او د پورته غوښتني د سرته رسېدو په هیله لا د پر مخ نسکورېدو سره په جګړه دي.

د هغوی یو لاس اوس هم د فیروزکوه په لور او بل یې د نارنج د نړېدلي ، ولي هسکي ماڼۍ په لور غځېدلی دی هغه غر او هغه ماڼۍ چې اوس يې هم سهار او ماښام د لمر او سپوږمۍ د روڼا لیکرۍ په پښو کښې لوېږي او د هغوی د لاسونو مچېده کوي . د هغوی څخه د لاس نیولو او يوه او بل ته د ورتللو او راتللو هیله ښکاره کوي . او غواړي چې د کروړ د اتلواله پاړکو نیلي دلته په دمه او بیا د کندهار په لور والوزي ، هلته د خپل لوړ پیغام روڼا خپره او بیا د نارنج د علمي مرکې غمي راواخلي د ایملند په اوبو يې د شدې ماتېدو وروسته د بست په شمله کښې وټومبي او په ځلېدو يې د غور د مازدیګري لمر ژړ اُفق د ستورو د لاړونو غوندې سپینه دنیا وګرځوي . څو د همدې ډېوو په روڼا کښې د دې لرغونو سیمو د لرغونو نیکه ګانو زامن او لوني د لرغوني غور ، بست ، کندهار ، زابل او د دوی سره د څرمه سیمو برم ته په مېړانه ملاوي وتړي او بیاني د کنډوالو په سرونو د پت جنډې په رپېدو کړي

هغه جنډې چې د غیاث الدین ، علاو الدین او شهاب الدین د څېرو په مېندلو پسې په تېېدو وي . هغسي تپېده چې بیا د پښتون حسین او پښتنې زینبې پسې په ژړېدو وي ، هغسي تپېده چې د ترنک د ناوې په یادېدو پسې يې بهاندې اوښکې په توئېدو وي او که د دې سیمو په خوانانو کښې دونده لېوالتیا پیدا سوه بیا به د بیټ نیکه ، غرغښت نیکه او سړبن نیکه اروحونه په خوښېدو وي . غوري واکمن به په مسېدو ، میرویس نیکه او لوی احمدشاه به په ډوريو کښې د خپلو بچو په سرونو د لاس تېرېدو ته په هڅېدو وي

په دې توګه به د دې لرغونو مېنو د مځکښو او وروستنیو دښمنانو زړونه په لړزېدو او ککرۍ په ټکېدو وي ، او دا توان به يې د خاورو سره خاوري وي چې د غور ، بست ، کندها راو زابل بچیان دي د بې فرهنګې په رنګ ورنګوي

اوس چې د لوی کندهار په هسک کښې فرهنګي ستوري د لنډې تیارې وروسته په ځلېدو دي . دا به لا د دښمن سترګي په ړندېدو کړي . پرون که په کندهار کښې

دا خوځښتونه پیاوړي سوي ـ نن دا دی د ایلمند په لرغوني مېنه او سبا ته به په زابل ـ ارزګان او نورو ورته پرتو سیمو کښې هم دا سپېڅلې لړۍ غځېږي او دا په ډانګ بیلي سوي اوبه به بېرته سمندر کېږي. او د دې سمندر په سینه کښې به د کروړ څپره لیدل کېږي، د ګڼ شمېر پوهیالي ښستیانو غاړې به تازه کېږي. او د کندهار د علمي مرکو تصویرونه به پکښې لاس پر لاس کېږي. دا به د ارغند او ایلمند سمندر وي په هغه کښې به د نارنج د مانۍ څخه د رازهي کښتۍ فرهنګي سېرلۍ د بُست د کلا تر څنګ دمه کوي او بیا به د هرې پر غاړه او د فیروز غره پر سپېڅلې لمنه د فرهنګي سجدو ادینه کوي.

دا چي نن د ایلمند د فرهنګي ټاټوبي په زړه کښې د پوهي د مینانو په زیار او زحمت سره یو لوړ قدم اوچت سویدی. اړیره خبره هم په دې کښې ده وياړ دي وي پدغسې خوانانو او د پوهي او فرهنګ پر پالونکو چي بیا نې د ابوالفتح بُستي پر مېنه د کلونو کلونو وروسته د فرهنګي بانډارونو او مرکو تاداو ایښی دي.

همدا خوانان نېکمرغه دي چي د نیکه ګانو فرهنګي ټاټوبی بیا په خلکو پېژني او د دې سیمي د فرهنګي هویت په څرګندتیا او پیاوړتیا کښې زیار ګالي، زه د دوی د همدې درانه ادبي چوپړ ولولې ستایم ورته د لوی خدایه د نور توان او څواکمنتیا غوښتنه کوم.

هیله لرم خپل تر منځ د وروري او فرهنګي همکارۍ پر بنسټ ډېر ښه یو والي وساتي، د مشرانو ، پوهو او خبیرو کسانو څخه د مشورې تر لاسه کېدني ته په درنه سترګه وګوري د ځان غوښتني او ځان خوښوني څخه کرکه وکړه سي. ځان د نورو او نور د ځان وګڼل سي، د نورو د تخریب او مغرضانه تخریش څخه ځانونه ګوښه وساتي. که دغه تګلاره خپله کړه سي نو د بست فرهنګي ټولني سنګر به پیاوړی او هویت به یې د هر چا سره منلی او غښتلی وي.

خدای دي وکړي چي همداسي واوسي. په پای کښې د بُست د فرهنګي ټولني د بنسټ ایښودونکو ـ مشرانو ـ کشرانو او هر غړي ته په ښلا ښله توګه او ورسره تاسو د ایلمند پتمنو خلکو ـ ټولو فرهنګي کړیو او سړیو ته ستاسو د همدغه وياړلي زیار ـ فرهنګي هویت او موجودیت او په همدې ښتني ټاټوبي کښې ستاسو د پوهنیز خلښت له امله مبارکی وایم په خپلو ټولو پام کښې لرونکو چارو او د فرهنګي زیار، هڅو او تلاښونو په سرته رسېدو کښې درته سرلوړي او بریالیتوبونه غواړم. د پاملرنې څخه مو مننه.

## مرګ او ژوند

- د مرګ څخه پرته ژوند ارزښت نه لري، دا د مرګ څخه ډار دی چي ژوند یې دومره ښکلی کړی دی.
- هره زانګو یو مړیستون هم دی.
- په جګ سر مرګ تر ګونډو وهلي ژوند ښه دی.
- د ستر سړي اندېښني هغه وخت ارزښت پیدا کوي چي په خپله تر خاورو لاندي سي.
- د انسان لپاره د هیلو مړه کېدل، رښتینی مرګ دی.
- کله چي انسان مړ سي په هماغه شېبه لویي تر لاسه کړي، د ده په وړاندي ټولي کینې او تربګنۍ د ده سره یو ځای مړې سي، د نیکنامۍ دروازې یې پر مخ پرانستل سي او په داسي مقام کښې کښېني چي هیڅ ډول خطر یې نه ځوروي.
- د هر شي زوکړه د مرګ پیل دی.
- عشق او علاقه ده چي انسان د خپل ژوند دوام ته هیله مند کوي.
- کله ـ کله د زړونو په کرونده کښې داسي تخم کرل کېږي چي یوازي یې د ازل لور او د مرګ لاس رېبلی سي.
- **پښتو متلونه دي چي :**
- ناروغي مرګ زېږوي.
- مرګ د اوبو وار دی، نن پر ما سبا پر تا.
- که سل کاله ژوندی یې آخر د ګور بنده یې.
- ژوند د مرګ انتظار دی.

## پښتو لنډۍ

ګل مي کاره یار راته ناست وو
چي ګلان ګل سول یار مي توري خاوري خورینه
سترګي مي مه پټوئ خلکو
یار می معطل دی بې وفا جانان راځینه


الحاج فضل محمد پنهان

# شهید محمدداؤد

## د تاریخ په هنداره کښې

دوهمه برخه

**میړني دي چې یادیږي په سندرو او په ویر**

... په کال ۱۳۳۵ ل (۱۹۵۶ م) کښې د افغانستان او امریکا تر منځ د هلمند د ناوې د پراختیا په هکله د امریکایانو سره د یو نیم ملیون ډالرو پور لاسلیک سو په کال ۱۳۳۷ ل (۱۹۵۸ م) کښې غربي المان د افغانانو سره ډیري د قدر وړ مرستي وکړې

په کال ۱۳۳۷ ل کښې صدراعظم سردار محمد داوْد خان امریکا ته سفر وکی، ده دا هیله درلوده چې امریکایان د افغانانو سره نظامي مرسته وکي، مګر امریکایانو د افغانانو سره نظامي مرسته ونکړه. په کال



کړه. په کال ۱۳۳۸ ل د امریکې جمهور رئیس "ایزنهاور" کابل ته سفر وکی، په کال ۱۳۴۰ ل (۱۹۶۱ م) کښې سردار محمد داوْد خان د ناپیلو هیوادونو په غونډه کښې چې په بلګراټ کښي جوړه سوې وه برخه واخیستل. په کال ۱۳۳۲ ل (۱۹۵۳ م) کښې د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند سرمنشي خورسچف او صدر اعظم بلګانن افغانستان ته دعوت کړه سوه، شورویانو سل ملیونه ډالره په یو نیم فیصد ګټه افغانستان ته پور ورکړ چې په دغه اقتصادي پلان

۱۳۳۸ ل (۱۹۵۹ م) کښې سردار محمد داوْد خان د فرانسې او جاپان سره اقتصادي قراردادونه لاسلیک کړه. په کال ۱۳۳۹ ل (۱۹۵۹ م) کښې سردار محمد داوْد خان د ایټالیا د هیواد سره اقتصادي او فرهنګي قراردادونه امضاء

کښې د کابل ښار سړکونه ډامبرول، د کابل د ښار سېلو جوړول، د کابل د جنګلک فابریکه، د هوایي میدان، د اُبو د بندو جوړول او د سالنګ د تونل جوړول شامل وو. په کال ۱۳۳۸ ل (۱۹۵۹ م) کښې د ننګرهار کانال او په کال

۱۳۳۶ ل (۱۹۵۸ م) د پولي تخنيک د پوهنځي د جوړېدو ډېره د برژنف په لاس کښېښول سول. په کال ۱۳۳۹ ل (۱۹۵۸ م) کې د نغلو د برق یا بریښنا د بند کار د روسانو د خوا څخه شروع سو او همدارنګه په سوو لوی او کوچنی پروژې د روسانو د خوا څخه په افغانستان کښې جوړې سوې. دا ځکه د امریکایانو اشتبا او بې توجه توب و چې داود خان شوروي اتحاد ته مخه کړه. سردارمحمد داود خان نه غوښتل چې د روسانو سره ډېلي اړیکي ټینګي کړې خو دا د امریکایانو اشتباه وه چې د سردارمحمد داود خان سره ئې نه اقتصادي او نه نظامي مرستي وکړې. داود خان د مجبوریت پر اساس خپله توجه روسانو ته رااړوي او د هغوي څخه ئې د اقتصادي او نظامي مرستو غوښتنه وکړل چې روسانو له ډېر وخته دا آرزو درلوده او د هغه غوښتنو ګروسانو په خلاص تندي جواب ورکی او د افغاني حکومت سره ئې خپل روابط ټینګ کړل.

انګریزان چې د تزاري روسیې څخه په ډېره کښې وه چې نه بایده روسان پر افغانستان حمله وکي، په کال ۱۲۱۸ ل ۱۸۳۹ م کښې امیر دوست محمد خان غوښته چې پر کندهار، کابل او پېښور خپله قبضه ټینګه کړي نو ئې و روسانو ته د مرستي وړاندیز وکی، مګر روسانو د امیر دا غوښتنه ونه منل، نو ځکه انګرېزانو د روسي خطر څخه خپلي لښکري افغانستان ته را داخلي کړې.

چې د افغانانو د سخت مقاومت سره مخامخ سول او په کال ۱۲۲۱ ل ۱۸۴۲ م کښې انګرېزانو د زیاتو تلفاتو سره سخته ماته وخوړل او د افغانستان څخه ووتل.

پسله ۴۰ کالو انګرېزانو په کال ۱۲۵۷ ل ۱۸۷۸ م کښې پر افغانستان حمله وکړه چې په دې وخت کښې د کابل او مسکو اړیکي دوستانه وې او هم سیاسي روابط د دواړو هیوادونو تر منځ برقرار وه چې برتانوي هندوستان هیڅ ډول اړیکي د کابل سره نه درلودې، نو امیر شېر علي خان د برتانیا د پېشرفت په خاطر د روسانو څخه نظامي مرستي وغوښتلې مګر روسانو د امیر شیرعلي خان دا غوښتني ونه منلې او نه ئې غوښتل چې روسي عسکر دې په ژمي د هندوکش لوړو غرونو ته چې سرونه ئې په سپینو واورو پوښلي دي و کابل ته داخل سي.

په کال ۱۳۵۸ ل ۱۹۷۹ م یعنی (۱۰۱) کاله وروسته د ببرک د حکومت په غوښتنه سرې لښکري د هندوکش د غرو څخه چې سرونه یې سپینو واورو پوښلي وه د سالنګ د لارې افغانستان ته راداخل او افغانستان ئې په ډېره بې شرمي اشغال کړ. په کال ۱۲۹۶ ل ۱۹۱۷ م کښې چې د بلشویکانو انقلاب په روسیه کښې کامیاب سو او لینن پر سر د قدرت راغلی او تزاري حکومت له منځه ولاړ په دې وخت کښې د بلشویکانو پر ضد یو اسلامي او ملي تحریک سر راپورته کوي او د کمونستي دولت پر ضد د جهاد اعلان کوي چې دغه اسلامي او ملي تحریک ته به روسانو باسمیچان ویل چې دغه اصطلاح به افغاني کمونستانو و مجاهدینو ته د اشرارو او باندېستانو په معنی استعمالوله د روسانو دایرة المعارف پر دې اعتراف کوي چې دغه اسلامي او ملي نهضت چې د کمونستانو پر ضد ئې جهاد کاوه د ډېرو دهقانانو (بزګرانو) څخه جوړ سوی و، د مذهبي او محلي پارتیزیي قوماندانو د خوا څخه رهنمایي کېدی او لس کاله د روسي کمونستانو سره و جنګېدی پسله لسو (۱۰) کالو څخه روسي کمونستانو د تیارو څخه کار واخیست او دغه اسلامي جنبش چې د افغانانو او انګرېزانو د خوا څخه حمایه کېدی د ناکامی سره مخامخ سو چې د دې ملي او مذهبي نهضت د ناکامېدو علتونه پوهان او مؤرخین په دې ډول تشریح کوي:

۱. څرنګه چې دغه مذهبي او ملي تحریک سره په نړیواله کچه داسې مرسته نه کېدل لکه د افغاني اسلامي تنظیمونو سره چې کېده.

۲. د جغرافیایي نقطه نې نظره: په روسي ترکستان، اوزبکستان او تاجکستان کښې داسې غرونه، نه وه موجود لکه په افغانستان کښې چې د مجاهدینو پاخه سنګرونه په هغو کښې وو.

۳. په سیاسي لحاظ: دنیا یا غربي نړۍ د دې مذهبي او ملي نهضت ملاتړ ونه کی نو ځکه کامیابه نه سو، د ځینو روسي اطلاعاتو پر اساس ویل کېده چې امیر امان الله شاه غازي د دغه ملي او مذهبي روسي ضد تحریک سره همکاري کول او زرو ـ زرو اوزبکو، ترکمنو او تاجکو چې تر نن ورځي پوري هم هلته میشت دي، که چیري غازي امان الله شاه د روسانو ملګري وای نو څنګه کېدای سوای چې دغه ملي او مذهبي تحریک مجاهدینو ته په افغانستان کښې د فنا ځای ورکړي او د دوی سره دي معنوي او مادي مرسته وکړي، او په لکو اوزبک، ترکمن او تاجک مهاجرو ته ئې په افغانستان کښې ځای ورکړ نو په همدې لحاظ د افغانانو او بلشویکانو تر منځ سیاسي حالات ترینګلي وه. په کال ۱۲۹۹ ل (۱۹۲۰) م کښې د دسمبر پر ۱۳م تاریخ د روسانو سره غازي امان الله شاه وروستي تړون امضا کی، د دې تړون هدف دا و چې د

یوه او بل هیواد په کورنیو چارو کښې مداخله او د افغانستان پر سرحداتو باندې تجاوز نه کول. او افغانستان د یوه آزاد او خپلواک هیواد په توګه پېژندل چې دا لومړی تړون و چې غازي امان الله شاه د روسي مشرانو سره امضاء کړ، چې تر دې تړون وروسته مکسو و کابل ته پنځوس زره ټوپکان څو دانې الوتکي او یو هوایي مکتب او یوه د باروتو جوړولو فابریکه او خیني تخنیکي مرستي ورسره وکړې، دا په دې اساس چې افغانستان تر خپل سیاسي نفوذ لاندې راولي انګرېزانو چې د مسکو دغه حرکت د خپل خان خطر احساس کی په کال ۱۳۰۰ ل (۱۹۲۱ م کښې د شوروي اتحاد سره ني قرار داد وکی، که چیري روسیه هر ډول صنعتي مواد و ته ضرورت ولري هغه به انګرېزان ورته تهیه کوي، په دې شرط چې روسان به د افغانستان څخه د یوې پایګاه په توګه د برتانوي هندوستان پر ضد کار نه اخلي، او پسله دې غازي امان الله شاه ایران، مصر، ترکیې، مسکو او هندوستان ته سفر وکی، په کال ۱۳۰۷ ل ۱۹۲۸ م کښي بیرته هیواد ته راستون سو، په کال ۱۳۰۸ ل ۱۹۲۹ م کښې د کابل څخه کندهار او د چمن له لاري ایتالیا ته ولاړ او تر ژوند تر پایه پوري هم هلته و اوسېد، چې د ده له تګ څخه وروسته مملکت د لوټمارانو، غلو، چپاولګرو او رهزنانو په لاس چور او لوټ کړای سو په کال ۱۳۲۶ ل ۱۹۴۷ م د جون پر ۱۰ مه نېټه د افغانستان وزیر دفاع د انګلستان نظامي اتشي ته چې په کابل کښې وو و ویل "د افغانستان خطرناک دښمن اتحاد شوروي دی" ا ودا ني هم و ویل "چې امکان لري چې یو وخت پر افغانستان باندې تجاوز او تیري وکړي او افغانستان اشغال کړي نو افغانستان د متحده ایالاتو نظامي او اقتصادي مرستو ته ضرورت لري "مګر واشنګټن و افغانستان ته د نظامي او اقتصادي مرستو ورکولو څخه د تجاهل څخه کار واخیست په کال ۱۳۲۷ ل ۱۹۴۸ م د افغانستان د ملي اقتصاد وزیر عبدالمجید خان "زابلی" واشنګټن ته ولاړ او د امریکایانو څخه ني د نظامي مرستو غوښتنه وکړه څو امریکایانو ۱۱۸ ملیونه ډالره افغانانو ته د قرض په ډول ورکړه زابلي د امریکایانو څخه دا غوښتنه هم وکړه چې افغانانو ته امریکائي سلاح ورکړي چې د داخلي امنیت د ساتلو او د هغو قبایلو سرحدي خلک چې مسلح دي د هغوي د سرکوبولو لپاره کار ورځني واخلي. مګر امریکایانو ته دې خبري هیڅ اهمیت نه درلودی چې افغانستان تې ولیري، کړ شي چې امریکایانو ته مهم و هغه د روسانو پیشرفت د افغانستان د لاري څخه و د زابلي په قول که چیري امریکایانو د افغانانو سره نظامي مرسته ونه کي او روسان پر افغانستان باندې یرغل وکي نو حتمي به افغانستان اشغال کړي نو څکه امریکایان لا جوابه پاته سوه او افغانانو تې د سلاح ورکولو څخه ډډه وکړه، او افغانانو دا هم و ویل که چیري امریکا و افغانانو ته سلاح ور نه کي نو دوی به د شوروي اتحاد څخه مرسته وغواړي چې دغه فرمان د امریکا د سفیر د خوا په کابل کښي واشنګټن ته مخابره سو، د یوه راپور له مخي د امریکا د دفاع د وزیر د لوی درستیز د خولې وایي چې "افغانستان د سوق الجیشي له مخي امریکا ته زیات اهمیت نه لري"

په کال ۱۳۳۰ ل ۱۹۵۱ م کښي د واشنګټن د ملي امنیت شورا و ویل "کرملین په ښکاره ډول خپلو منابعو ته په افغانستان کښي زیات اهمیت نه ورکوي که چیري افغانان د شوروي اتحاد په مقابل کښي ایجاد کي په اسانۍ سره ني نیولای سي نو پر افغانستان باندې د روسانو حمله امکان لري چې د خینو عناصرو او په ځانګړي ډول د پښتني قبایلو د سخت مقاومت سره مخامخ سي او جنګ دوام پیدا کي او داغسي هم وسوه، په کال ۱۳۵۷ ل کښي چې د جدي پر شپږمه نېټه چې سرې لښکري د آمو د سیند له لوري راپوري وتلې، او افغانستان تې اشغال کی دوی دا فکر کاوه چې دا هم چکسوا کیا ده په کال ۱۳۳۰ ل ۱۹۵۱ م کښي چې شاه محمود خان واشنګټن ته ولاړی د امریکا د رئیس جمهور هري اس ټرومن څخه نې د نظامي مرستي غوښتنه وکړه (ټرومن) په جواب کښي ورته و ویل "امریکایان د افغانانو هغه پیشنهاد نه ردوي کوم چې د امریکایي سلاح په هکله نې کړی و" په کال ۱۳۳۰ ل ۱۹۵۱ م کښي د اګسټ پر ۱۳ مه نېټه افغانانو د سلاح لیست امریکایانو ته ور وړاندي کی د نومبر په ۲۷ مه نېټه د امریکایانو جواب دا و چې افغانان باید ۲۵ ملیونه ډالره نغدي امریکایانو ته وروسپاري او بیا سلاح په ښکاره ډول د پاکستان د لاري افغانستان ته انتقال سي، دا شرایط د امریکایانو د خوا او افغانانو ته غیرقابل قبول وه

په کال ۱۳۳۲ ل ۱۹۵۳ کښي کوم وخت چې سردار محمد داوْد خان د دفاع وزیر وو هم د امریکایانو څخه نې د نظامي مرستي غوښتنه کړې وه مګر امریکا منفي جواب ورکی دا په دې خاطر چې د افغانستان شرقي او غربي هیوادونه د امریکا ملګري وه نو د امریکایانو دا منفي سیاست په افغانستان کښي افغانان دې ته مجبوره کړه چې د خپل شمالي ګاونډي د سره ښامار په خوله کښي خپل ځان ورکي او د خپل هیواد د ساتلو په خاطر چې شرق ته نې پاکستان او غرب ته نې ایران پراته وه، خطر احساساوه نو نې د روسانو سره خپلي اړیکي ټینګي کړې، په کال ۱۳۳۴ ل ۱۹۵۵ م کښي د افغانانو او روسانو تر منځ د مذاکراتو دروازې خلاصي سوې او هغه پیشنهادونه چې د روسانو د خوا څخه افغانانو ته سوي وه او د افغانانو د خوا څخه رد سوي وه دوباره صورت نیسي نور بیا

نهم څپرکی

لومړۍ برخه

# قانون



ژباړه محب الله اسحاقي

د دولت د جوړولو اساسي هدف او مقصد د امنیت ساتنه ده. دولت دا ساتنه د قانون یا حکم په واسطه کوي. د قانون په واسطه د دولت حاکمیت څرګندېږي. نو دا پوښتنه پیدا کېږي چې قانون څه شي دی؟ څنګه جوړېږي، او څو ډوله دی؟ آیا دولت تر قانون پورته دی، او که یا خپلې ټولې دندې او کړنې به د قانون په چوکاټ کښې تر سره کوي؟

## قانون څه شي دی؟

د قانون اصطلاح په بېلابېلو علومو کښې کارېږي خو په هر علم کښې یې مفهوم توپیر لري. د قانون توري په عربي کښې د پخواني یوناني ژبې له Kanun څخه اخیستل سوي دي. چې د قاعدې یا اساسي پیمانې مانا ورکوي. چې د هغه په واسطه د یوه هنر او فن معیار ټاکل کېږي. خو وروسته د داسي ظابطې او اصولو مانا ترې واخیستل سوه چې د هغه مطابق کوم عمل واقع کېږي.

د مثال په ډول د قدرت د قانون مانا د اده چې د قدرت یا فطرت ټول عوامل او پېښې په منظم ډول راڅرګندېږي. مثلاً د کښتنې خواته د اوبو بهېدل، د ختیځ لخوا د لمر راختل، او داسي نور د قدرت قوانین دي. او د دې قوانینو پر بنسټ ټول فزیکي، کیمیایي، او بیالوژیکي عوامل راڅرګندېږي. په طب کښې هم د روغتیا اصول د قدرت د قوانینو سره سم را منځته کېږي. په دغه ټولو علومو کښې د قانون اصطلاح یواځې د علم او پېښو د را څرګندېدو د یو شانته والي، پرله پسې توب او نه بدلېدونکي حالت و خواته اشاره کوي.

د طبیعي علومو پرته د قانون توري په اجتماعي علومو کښې هم استعمالېږي. خو په هغه کښې یې مانا لږ څه توپیر لري. یعني عبارت له هغه یو شانته والي او باقاعده ګۍ څخه دی چې د انسان په حرکاتو او سکناتو کښې نظم رامنځته کوي. دغه یو شانته والی او باقاعده ګي په دوه ډوله رامنځته کېږي.

لومړی - انساني فطرت د خپلو تمایلاتو او غوښتنو له کبله چې په فطري عواملو کښې کومه باقاعده ګي لیدل کېږي هغه د انساني ارادې او شعور تر واک وتلې ده. هغه قوانین چې د دغسي فطري عادتونو پر باقاعده ګی او یو شانته والي باندې ولاړ وي هغه کوم انسان له منځه وړلای نسي. دغه عمل د انسان تر وس وتلی دی. د مثال په توګه په اقتصاد پوهنه کښې "طلب او رسد" Demand and Supply قوانین او نور . که څه هم په دې اړه د پوهانو تر منځ زیات د نظر اختلافات سته څنګه چې مو د کتاب په لومړي څپرکي کښې یادونه کړې ده.

د دې برعکس د قانون اصطلاح په بله یا درېیمه مانا هم کارول کېږي. په دې کښې قانون عبارت د یو شانته والي او باقاعده ګي له داسي اصولو یا قاعدې څخه دی چې انساني ارادې یا شعور را منځته کړي وي.

اخلاقیات او سیاسي علم دوه داسي اجتماعي علوم دي چې په هغه کښې د قانون توري د پورته مانا درلودونکي دي. دغه علوم د انساني ژوند پر هغه اړخونو باندې بحث کوي چې په هغه کښې د انسان پر حرکاتو او سکناتو کښې د هغه د خوښې، ارادې او شعوري فعل ډېر دخل وي لهذا هغه اصول یا قاعده چې په دغه حرکاتو او سکناتو کښې باقاعده ګي او یو شانته والی راولي قانون بلل کېږي. نو په دې ډول د قانون توري په درې بېلا بیل ډول کارېږي:

لومړی - داسي طبیعي یو شانته والی یا باقاعده ګي چې په قدرتي مشاهداتو او مظاهراتو کښې سته چې په هغه کښې انسان هیڅ دخل نلري. د دې قوانینو څېړنه طبیعي یا قاطع علوم (Natural or Exact Sciences)کوي. مثلاً فزیک. کیمیا او نور.

دوهم - د انساني ژوند داسي عوامل او تمایلات چې په یو شانته والي او باقاعده ګي کښې یې انساني اراده هیڅ دخل نه لري. نو د دې قوانینو څېړنه اجتماعي او بیالوژیکي علوم

(Social and Biological Sciense.) کـوي. چـې انساني شعور او کوښښ یې تر تاثیر لاندي کـولای نسـي ځکـه چې انساني فطـرت هـم د طبیعـت یـوه برخـه ده. لامـل یـې دا دی چې په انسـاني فطـرت کښـي هـم د طبیعـت قـوانین کارفرما وي. او په انساني ژوند او انسـاني حرکـاتو او سـکناتو کښي هم غیر شعوري او غیر ارادي یو شانته والـي او باقاعـده ګي لیدل کیږي، ځکه چې په غیـر ژونـدي طبیعـت کښـي لیدل کیږي.

دریم :- د انساني ژوند په داسي افعالو او تمایلاتو کښي چې په هغه کښي د انساني خوښي او ارادې په واسطه یو شانته والـي او باقاعده ګي راوستل کېدای سي، نو د دغه قوانینو مطالعـه اخلاقیات یا اخلاق پوهنه پـه خـانګړې توګـه سیاسـت پوهنـه (سیاسي علم) او قانون پوهنه کولای سـي. پـه اصـل کښـي د قانون د توري کارونه هم دغه وروستي ذکر سوي علوم کـوي او د دې تر څنګ د قانون د دغـه فـرق پـر اسـاس بانـدي پـه علومو کښي هم فرق کولای سو. هغه علـوم چـې د طبیعـت قوانین څېړي معین علوم (Exact Science) بلل کیـږي. او هغه علوم چې د انسان نافذه کړي قوانین څېړي غیـر معـین علوم Non-Exact Science بلل کیږي. د دغـه دواړو تـر منځ داسي اجتماعي او بیالوژیکي علوم سته چـې د انسـاني او طبیعـي ژونـد تـر مـنځ د طبیعـت معـین قـوانین څېـړي. مـثلاً بیـالوژي، زولـوجي، بوتـاني، طـب، اقتصـادیات، اجتماعیات او نور ...

**د قانون تعریف :**

په سیاسي علم او قانون پوهنـه کښـي د قـانون اصـطلاح خاصي معناوي لري. چې په هغه کښي قانون عبـارت لـه یـوه داسي نظم څخه دی چې د انسان په ټولـو بهرنـي حرکـاتو او سکناتو کښي ضبط او نظم رامنځته کوي یا په بلـه وینـا قـانون هغه قاعده ده چې د اتباعو حقوق او مکلفیتونه په ګوته کوي. دولـت قـانون جبراً نافـذوي چـې د سـرغړوني پـه صـورت کښي سـرغړونکو تـه سـزا هـم ورکـوي. و دغـسي قـانون تـه سیاسي یـا مثبـت قـانون Political or Positive Law یا هم عادي قانون Ordinary Law ویل کیـږي. د داسـي قوانینو مقصد د امنیت ساتنه، د حقوقـو او مکلفیتونـو ټاکنـه، د اتبـاعو خـوښي او سـوکالي، پـرمختګ او بـه والـي دی. چې د حصول لپاره یې دولت پـه وجـود راغلـي دی. د دغـه مقاصدو په اساس د حاکمیـت تصـور رامنځتـه سـوی چـې د نافذولو لپاره یـې دولـت خپـل حاکمانـه جبـر او اختیـاراتو څخه کار اخلي.

**څو مستند تعریفونه :**

د مثبت یا سیاسي قانون پوهانو د قانون مختلف تعریفونه ــ وړاندي کړي دي چې یو څـو مسـتند تعریفونـه یـې دلتـه لیکو:

قانونپوه سامند (Salmond) لیکي: "قانون د اصولو یوه داسي ضابطه ده چې دولـت د عـدل او انصـاف سـاتلو لپـاره رامنځته کړې او نافذه کړې ده."

یـو بـل قـانونپوه هالینـډ (Holland) لیکـي: "قـانون د عمل هغه عمومي اصول دي چې یواځي پر بهرني حرکاتو او سکناتو باندي یـې نظـر وي. چـې یـو ټـاکلی انسـاني حـاکم چې په دولت کښي تر ټولو لوړو اختیـاراتو درلـودونکی وي، نافذه وي."

هغه په لنډه توګه داسي لیکي: "قانون د بهرني عمل هغه عمومي اصول دي چې د دولت سیاسي قوت یې نافذه وي."

یو انګریز فیلسوف تی ـ ایچ ـ ګـرین T.H.Green یـې داسي تعریفوي: "قانون د حقوقو مکلفیتونو داسـي ضـابطه ده چې دولت یې نافذه وي."

د امریکا ولسمشر وډرووولسن Woodrow Wilson یـې ډېر زبات واضح تعریف کړی دی: "قانون د منل سوو خیـالاتو او عاداتو هغه برخـه ده چـې و هغـو تـه د واضـح او اصـولي تصدیق په واسـطه د داسـي قواعـدو شـکل ورکـړه Formal سوی دی چې د حکومت د طاقت او اختیاراتو ملاتړ ورسـره وي."

**د قانون شننه :**

د پورته تعریفونو پر بنسټ باندي وینـو چـې د قـانون پـه مفهوم کښي شپږ عنصره موجود دي.

لومړی :- یو شانته والی Uniformity -

قانون د انساني ژوند لپاره یو رنګه او عمومي اصـول دي چې فرد ته همېشه د څه کولو او نه کولو توصیه کـوي. چـې حـق یـا مکلفیـت هـم بلـل کیـږي. د بیلګـي پـه توګـه د ملکیت قانون مالکانه حقوق او مکلفیتونه په یوه ډول پـر ټولـو باندي تطبیق کوي.

دوهم :- هر اړخیزه والی او مساوات Universality or Equality -

قانون پر ټوله جامعه باندي تطبیق کیږي او په اصل کښي د یو شانته والي عنصر د افعـالو او د هـر اړخیزوالـي عنصـر د اشخاصو و خواته اشاره کوي. چې مطلب یې دا دی چـې پـه قانون کښي ټول افراد، خان وي که مسکین، ادنـی وي کـه اعلی، حاکم وي که محکوم، ټـول برابـر دي. یعنـي ټـول د

قانون تابع او ماتحت دي، او په همدې توګه ټولي ټولني او ډلي په مساويانه توګه د قانون تابع دي. و دغه اصل ته په قانون کښي د مساوات اصل ويل کيږي چي د قانون له بنسټيزه اصولو څخه يو دی.

دريم - بهرتوب -:Externalness or Externality

سياسي قانون يوازي د انسان پر بهرنيو حرکاتو او سکناتو باندي څار کوي، او د ذهني افکارو او ارادو محاسبه تر هغه وخته نه کوي تر څو په بهر کښي يې عمل واقع نسي. نو له همدې امله په قانون کښي د نيت او ارادې په اړه هيڅ پوښتنه نسته، خکه چي قاضي د خلکو د زړه په خبرو باندي نه وي خبر او محکمه يا عدالت يوازي د هغوي د اعمالو حساب کوي چي په بهر کښي ترې واقع کيږي. د بيلګي په توګه قانون غل تر هغه وخته نه نيسي چي عملاً غلا ونه کړي. يوازي د شک او شبهې يا هم نيت پر بنسټ قانون چاته سزا نه ور کوي.

څلرم -: محتوی او مضمون -:Contents

زياتره قوانين حقوق او مکلفيتونه بيانوي، چي همدا يې اصل هدف دی. هر قانون يوې تبعې يا اتباعو ته حق وربخښي او نورو ته بيا مکلفيتونه په ګوته کوي. خو بيا هم ځيني قوانين داسي سته چي هيڅ کوم حق يا دنده نه بيانوي او يوازي د دولت کړندود (دستور العمل) وي. د بيلګي په توګه د اوبو د ډم جوړولو د يوې پروژې قانوني لايحه يو داسي قانون دی چي په واسطه يې حکومت د اوبو د برېښنا پروژه بشپړه وي. له داسي قانون څخه هيڅ چاته کوم حق نه رسيږي او نه هم د کوم څه کړنه يا مکلفيت پر لازميږي.

پنځم - تشکيل -

قانون لپاره دا لازمي ده چي په منظمه توګه په قانوني شکل او صورت سره وړاندي سي. عموماً د قانون جوړوني کار مقننه يا قانون جوړونکې شورا تر سره کوي. خو اعلي حاکم مثلاً اولسمشر يا پاچا هم قانون جوړولای سي. زياتره وختونه دولت د خلکو و عام رسم و رواج ته هم د قانون شکل ورکوي. خو رسم و رواج ته تر هغه وخته قانون ويل کېدای نسي تر څو پوري چي دولت يې د خپلو قانون جوړونکو لارو چارو په واسطه قانوني تشکيل کړی نه وي.

شپږم -: تعزيريت يا نفاذ -:Sanction or Enforcement

قانون دولت نافذه وي. که ضرورت وي نو د خپلو اختياراتو څخه په کار اخيستني سره په خلکو مني او د سر غړوني په صورت کښي و سرغړونکو او قانون ماتوونکو ته سزا هم ور کوي و دغه جبري قوت يا نفاذ ته تعزيريت ويل کيږي. دا هغه قوت دی چي له لاري يې قانون عملي کيږي. که چيري د قانون سره دغه قوت ملګری نه وي نو به د سياسي قانون او ټولنيز رسم و رواج يا اخلاقي اصولو تر منځ هيڅ توپير نه وي. نو له همدې امله ده چي تعزيريت د سياسي يا مثبتي قوانينو امتيازي نخښه ده.

**د قانون ماخذونه** -:Sources of Law

قانون د څه شي څخه تر لاسه کيږي، او څنګه جوړيږي؟ يعني ماخذ يې څه شی دی؟ د دغې پوښتني په ځواب کښي د شپږو سرچينو يا ماخذونو يادونه ضروري ده.

اول -: رسم و رواج -:Customs or Usage

د قانون تر ټولو پخوانی ماخذ رسم و رواج دی. رسم و رواج عبارت له هغه طريقې څخه دی چي په خلکو کښي له لومړنيو زمانو څخه نسل پر نسل دود سوي وي. چي د جواز لپاره يې خلک د خپلو پلرونو او نيکو د ژوند د لارو چارو حواله ورکوي. دا مسئله په اصل کښي د ټولنيز ژوند په هغه تړاوونو او معاملو کښي پيدا کيږي چي په ورځني ژوند کښي انسان ورسره مخ دی. لکه کوژده او واده، وراثت، کرهنيز کارونه پير او پلو راو .....

کله چي په دغو مسايلو کښي کومه پوښتنه پيدا سي نو عموماً د مشرانو پر طريقو او د رسم و رواج پر بنسټ باندي موضوع فيصله کيږي. او کله چي يو ځل يوه طريقه يا لاره په يوه ټولنه کښي دود سي نو بيا پښت پر پښت پاتيږي او رسم و رواج ته نوځي. خو کله چي بيا منظم سياسي نظام رامنځ ته سي نو اعلي حاکم دغه رسم و رواج خپل قانون وګرځوي. نو په دې توګه ډېر زيات قوانين په لومړي سر کښي يوازي رسم و رواج وي چي د حاکميت لخوا تر منلو وروسته د قانون حيثيت ورکړه سي، مثلاً د انګلستان عامه قانون Common Law د هغه ځای د رسم و رواج څخه اخيستل سوی دی.

دوهم -: مذهب -:Religion

مذهب، جادوګري او توهم پرستي د قوانينو ماخذونه دي. په لرغونو زمانو کښي به هر قانون د خدای ﷻ قانون ګڼل کېدی. او د قانون د حکم څخه سرغړونه به د خدای د حکم څخه سرغړونه ګڼل کېده. او په دې توګه به د حرام او حلال، روا او ناروا په اړه فيصلي کېدې. کله چي لوی مذهبونه رامنځ ته سول نو خپل پيروان يې د ټولنيز، اخلاقي او نورو قوانينو او اصولو تابع وګرځول. چي په وروسته کښي د دولت د قانون او اصول وګڼل سول

په دې توګه د مذهب لارښووني د سیاسي قانون ماخذ او سرچینه وګرځېدې. د بېلګې په توګه شریعت اسلامي قانون دی چې د اسلام دین دود کړی دی. په عیسویت او نورو مذهبونو له زده کړو او لارښوونو څخه هم په قانون جوړونه کښې زیاته استفاده سوې ده.

دریم - قضایي پرېکړې - Judicial Decision

کله چې کومه دعوه په محکمه کښې وړاندې سي نو دا د قاضي تر ټولو لومړنۍ دنده ده چې په اړه یې فیصله د قانون سره سمه وکړي. خو ځینې وختونه داسې دوسیې رامخې ته کیږي چې د کوم موجود قانون اطلاق په بشپړه توګه نه پر کیږي، نو په داسې صورت کښې قاضي موجوده قوانین په داسې ډول پلي کوي چې حق او انصاف په وسې نو په داسې فیصلو سره قانون یو نوی او بېل شکل ځانته غوره کوي او دغه فیصله ځانته یو نوی قانون وګرځي. چې په وروسته کښې د ورته دوسیو د حل لپاره کار ځنې اخیستل کیږي. په دې توګه دغه فیصله یو مثال ځانته غوره کړي. دغسې قوانین قاضیان د خپلو پرېکړو په واسطه جوړه وي. د قاضي له لوري جوړ کړل سوي قوانین Judge made Law یا د محکمې مخکنۍ فیصلې Precedent او یا هم د دوسیو حلونکی قانون Case Law بلل کیږي. نو په دې توګه محکمې هم د قانون جوړوني کار کوي او دغه کارونه د یوه هیواد ستري محکمې کولای سي.

څلورم - قانوني شرحه یا تفسیر Legal Commentaries

د قانون په اړه د مقتدرو او منلو قانون پوهانو شرحې او تفسیرونه ځینې وختونه د قانون ماخذ وګرځېږي. منلي قانون پوهان پر بېلو ـ بېلو قوانینو تبصرې کوي او هغه سره پرتله کوي، او د هغو پر قوي او کمزورو ټکو رغېږي، او په دې توګه د دوی دلایل کله ـ کله په محکمو کښې قاضیانو ته د منلو وړ وګرځي.

په اسلامي هیوادونو کښې فقهیان او مفتیان د خپل تفسیرونو او شرحو په واسطه د اسلامي قوانینو په ترویج کښې ډېر مهم رول لوبوي. د بېلګې په توګه هدایه، فتوای عالمګیري، شرح مجله او نور داسې کتابونه دي چې اسلامي قانون ځنې اخیستل سویدي. په هندوانو کښې (متاکشره) او (بابهاګا) دوه مشهور تفسیرونه دي. په انګلستان کښې د درو مشهورو قانون پوهانو لکه کوک Coke، هیل Hale او بلیک ستون Black Stone شرحې د انګریزي قانون ماخذونه ګڼل کیږي.

پنځم - معدلت Equity

معدلت په لغوي توګه د حق او انصاف مانا ورکوي خو په قانون پوهنه کښې د قاضي هغه اختیاراتو ته ویل کیږي چې کومه دوسیه د حق او انصاف پر بنسټ حلوي. بېله هغه خو هم قاضي هره دوسیه د قانون پر بنسټ حلوي خو درې داسې حالته سته، کېدای سي چې په هغه کښې قاضي د قانون پر ځای د معدلت پر اصولو باندې فیصله وکړي.

لومړی هغه وخت کله چې یوه داسې دوسیه رامنځته سي چې موجوده قانون یې نه احاطه کوي. دویم هغه وخت چې د موجوده قانون په اطلاق سره نا انصافي رامنځته کیږي. او دریم هغه وخت چې حالات داسې بدل سوي وي چې د موجوده قانون په اطلاق سره هم انصاف نه کیږي. نو په داسې صورتونو کښې قاضي دوسیه د خپل منصفانه فکر سره سم فیصله کوي. د ده دغه فیصله د نوي قانون حیثیت لري. دغه اصولو ته د معدلت اصول ویل کیږي. عموماً د معدلت اختیارات یوازې د ستري محکمې سره وي.

**قانون جوړونه** Legislation

د قانون جوړوني لار تر ټولو نوې او مهمه ده. رسم و رواج په خلکو کښې، مذهب د پیغمبرانو او اولیاوو قانوني فیصلې او معدلت له محکمو څخه پیل کیږي. قانوني تفسیرونه لوی او منلي قانون پوهان کوي. خو د قانون جوړوني کار قانون جوړونکي شورا او یا هم کوم حاکم تر سره کوي. د قانون جوړوني له لارې څخه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې د ټولنې اړتیاوې او اړیکې پېچلې او ژر اوښتونکي او بدلېدونکي وي. نو په داسې صورت کښې رسم و رواج، مذهب او نور د هرې ورځې سره سم نوی قانون نه سي وړاندې کولای او حالات هم دومره په تېزۍ سره اوړي چې زوړ قانون تعدیل یا منسوخه کیږي او د نویو قوانینو د رامنځته کولو اړتیا لیدل کیږي. نو دغه اړتیا نوري وسیلې نسي لیري کولای نو ځکه خو په دولت کښې اعلی حاکم خپله نوي قوانین وضع کوي.

په دیموکراتیک نظام کښې دغه چاري قانون جوړونکې شورا یا مقننه تر سره کوي چې خلک یې ټاکي. په دیکتاتوري نظامونو کښې بیا دا دنده په خپله دیکتاتور بشپړه وي. لنډه دا چې په اوسني عصر کښې په هر دولت کښې هر کال زیات نوي قوانین ترتیب او پلي کیږي چې و دغه کار ته په انګریزي کښې ایکټ (Act) (هغه قانون چې قانون جوړونکي شوراء تصویب کړی وي) یا قانوني لایحه Statutes یعني مقننه قوانین ویل کیږي.

نور بیا ...

فیض الله "غمخور" ـ خوست

# تعصبونه څنګه له منځه وړلای سو؟

اوس اوس چې هیواد لږ او ډېر د بیا رغونې پر لور روان دی نو مناسبه ښکاري چې د هیواد د سږکونو، ښوونځیو، پوهنتونونو، اداري او ملي تاسیساتو تر څنګ د انسانانو د فکرونو د بیا رغونې کار هم پیل سي. څکه څومره چې د دې هیواد ښوونځي، سړکونه او نور ملي تاسیسات وران سوي همدومره د دې هیواد د انسانانو فکرونه هم وران سوي. بېلو بېلو هیوادونو د دې هیواد د خلکو فکرونو ته تخریبي پیچکاري کړي او پدې وسیله یې د دې هیواد د خلکو تر منځ فاصلې رامنځته کړي او دا خلک یې په ډلو، ګوندونو قوم او سمتونو ویشلي، حال دا چې پدې ملک کښې مختلف قومونه اوسېږي او یو واحد ملت دی. دا چې دا واحد ملت ولې په فکري او قومي لحاظ سره بېل سو مختلف لاملونه لري چې زما په اند دوه یې تر ټولو اړین دي.

۱. بهرنی مداخله
۲. داخلي ایجنټان

دا چې مداخله کوونکي څوک وو؟ او داخلي ایجنټان څوک وو، فکر کوم لږ او ډېر یې هر څوک وپېژني.

دا چې اوس د هیواد په خینو تاسیساتو د بیا رغونې کار روان دی. ایا د انسانانو د فکرونو د رغونې لپاره هم څه کېږي او که؟ دا هغه پوښتنه ده چې پدې لنډه او تنګه لیکنه کښې یې خواب لږ او ډېر موندل کېدای سي؟

خو پکار دا ده چې لومړی هغه څه معرفي کړو چې د انسانانو د فکرونو په رغونه کښې محکم رول لري.

زما په اند هغه څه چې د انسانانو د فکرونو په رغونه کښې ډېر رول لري دا دي.

۱. ملي غونډې او جرګې
۲. سیمینارونه او ورکشاپونه
۳. رادیو او تلویزیون
۴. مطبوعات او چاپي خپروني

او س مو چې د انسانانو د فکرونو د رغونې مختلف اړخونه په ګوته کړل نو اوس پکار د اده چې مونږ په جرګو مطبوعاتو، رادیو، سیمینارونو او ورکشاپونو کښې څه وکړل او څه شي پکښې کوو؟

لومړی به په هیواد کښې د تیرو دوو لویو جرګو راپور وړاندې کړو چې څه موده پخوا تیرې سوې.

مونږ په لومړنۍ لویه جرګه کښې چې کرزی یې د دوهم ځل لپاره بیا رئیس جمهور کړ هغه څه ولیدل چې خلک یې په دې قانع کړل چې رښتیا هم د دې ولس تر منځ څومره فاصلې رامنځته سوي. همدا ډول د اساسي قانون لویه جرګه څو ورځې پدې وخندېده چې د جرګې خینو وکیلانو د افغانیت په نوم کلکه نیوکه درلوده ! ودا نوم یې یوازې پښتنو ته راجع کاوه. حال دا چې پدې ملک کښې چې هر څوک اوسېږي ټول افغانان دي. خو دوی تر اوسه په دې نه پوهېدل او یا یې په اصطلاح د هغه بهرنیو مداخله کوونکو د خوشحالولو لپاره دا کار کاوه چې دوی ته د داسې خبرو په مطرح کولو کښې به څه خوږې ورکوي.

همدا شان زمونږ ورکشاپونه او سیمینارونه چې نړیوال ورته د ملي مسایلو د حل لپاره روږي ورکوي خو متاسفانه همدا ډالر د یوې ډلې او یو قوم لخوا د ملت د تخریب په خاطر کارول کېږي. مطبوعات چې اوس په نړۍ کښې د څلورم قوت په توګه منل سوي داسې څه خپروي چې له هغه پخوانیو ورانوونکو توغندیو څخه دې ملک ته ډېر زیات زیان رسولی سي. دا څکه د مطبوعاتو د خپرولو لپاره کوم ثابت معیار نه دی ټاکل سوی بس هر چا چې د ( ) کالنی عمر بشپړ کړی. افغاني تابعیت ولري د ورځپاڼې مجلې او خانګړې رادیویي امتیاز اخیستی سي. د افغانستان ملي رادیو او تلویزیون چې له کابله خپل نشرات کوي که د چا پر ضد په ظاهره څه نه وایي خو فیصدي مد نظر نه پکښې نیول کېږي

بس هغه څوک چې له همدې خایه څه نشر کوي یوازې خپل خان ویني او د خپل خان په خاطر یو څه نشر کوي چې دا کار د افغانستان رادیو تلویزیون د سختې ناکامۍ سره مخ کړي دي

د دې لپاره چې هم مطبوعات خپله آره دنده پر مخ بوزي او هم د ملت تر منځ پیدا سوې فاصله را لنډه سي نو پکار د اده چې دولت او ملت د دې ستونزې د اواري لپاره د زړه د اخلاصه خپلې موټې رابډ وهي. د ملت خلک باید پخوانې ویرې شاته وغورځوي جرگې او غونډې ته ملي او په وطن او خلکو مین خلک معرفي کړي داسې خلک نه چې په دوی خان په زوره واکمنوي. دوی که داسې خلک چې په زوره په دوی خان واکمنوي پدې پوه سي چې دا خلک یوازې د څو ورځو لپاره د دوی لپاره گټور دي چې وروسته همدا خلک چې واکمنۍ ته رسېدلي دي هم د دوی لپاره زیان رسوي، هم ملک له ستونزو سره مخ کوي نو خلک باید رښتین خلک جرگو او غونډو ته ور وپېژني چې په دې وسیله به د خلکو ستونزې لرې را کمې سي، همدا ډول که د مطبوعاتو د چلوونکو د تشخیص لپاره دولت یو پلاوی وټاکي تر څو هغه خپروني او رادیوگانې چې د ملت د تخریب لپاره کار کوي ودروي، دا به یوه بله لاسته راوړنه وي. سیمینارونه او غونډې چې د ملت د فکري رغونې لپاره جوړېږي که په رښتونې ډول سم خلک د افغانستان د ټولو قومونو څخه ورته ور وپېژندل سي نو څرگنده ده چې پایلې به یې گټورې وي. نو اوس اړینه دا ده چې ملت او حکومت دواړه د دې کارونو د هماهنگ کولو لپاره سره یو ځای سي او دخلکو تر منځ رامنځته سوې فاصلې سره لنډې کړي

---

## د خوړو ساتل ...

او وېې خړوي. کوچنۍ ټوټې د غټو ټوټو په نسبت ډېر ژر وچېږي. په وچولو سره د غوښو خوند تر ډېرې اندازې بدلېږي، اوبه یې ننېږي، خو غوښې نه خرابېږي. د کبانو په سوادگرۍ کښې دغه لارې چارې د کوچنیو کبانو د ساتلو لپاره په کار اچول کېږي. په ځینو هیوادونو کښې د غوښو پر ټوټو باندې مالگه اچوي، په غټو خونو کښې یې ایږدي او د لرگو براده ورته لگوي او په دغه ډول یې وچوي. په دود کې د ځینو موجودو مرکباتو د تعامل له امله غوښې له خرابېدو څخه خوندې پاته کېږي. د گرمۍ په موسم کښې د غوښو ساتلو لپاره یو ټوکر راواخلئ په سر که یې لوند کړئ، غوښې پکښې وپېچئ او کښې یې ږدئ، تر ډېره مهاله نه خرابېږي

## علم او پوهه ...

علم پخپله په انسان کښې ښه والی او نیکي نه پیدا کوي، او یوازې په شرافت او نیکۍ باندې پوهېدل هم کافي نه دي تر څو چې په تر لاسه کړې علم باندې عمل ونه کړي

تر هغه وخته چې انسان د علم په تر لاسه کولو کښې بوخت وي هغه عالم بلل کېږي، او کله چې هغه دا گمان وکړي چې زما یو څه زده سوه نو هغه ناپوه بلل کېږي

له علم څخه نیکي، شرافت، انسانیت او درناوي حاصلېږي. عالم خبرې لږ او اورېدل ډېر کوي که خبرې کوي نو هم پر ځای او درنې خبرې کوي تر څو اورېدونکي ته یې فیض او گټه ورسېږي

نو عالم ځکه لږ خبرې کوي چې په ډېرو ویلو کښې د غلطۍ امکانات وي. علم د ډېرو پوهېدلو او زده کولو نوم دی

احمد صمیم

### آفت ثور

د آزادۍ لمر ډوب سو، توره تیاره خپره سوه، خطرناکه حشرات له غارو راووتل، هر څوک یې وچیچل، تاسو د قصابانو په نوو جامو مه خطاوزئ.

چړې یې هغه رقم تیرې دي تاسو پر بوی نه پرېږدي، تاسو د اوبو چینلو ته لا نه پرېږدي.

ستاسې د هډوکو د ماتېدو آواز به تاسو خپله واورئ، تاسو به په وینو رنگ برېتونه بیا ووینئ.

پر ضعیفو هډوکو تبرونه څرخي، د باروتو اژدهار په پوښهارې را روان دی فریادونه په ستونې کې زندۍ سوه.

د نظر سترگې بخیلې دي، او د چا په کیسه کې نه دي، څوک به د دې پېچلې خوب غوټې د تعبیر په گوتو را خلاصې کې؟

پوهنه رڼا ده !

# علم او پوهه

وېزمه همت اسحاقي

د علم په اړه ډېر څه ویل کېدلای سي، چي د علم په تر لاسه کولو کښي څه ښېګړي سته. تر هر څه دمخه د علم د ښه والي او لوړ والي په اړه خدای ﷻ پخپله کتاب کښي داسي فرمایلي دي.

"آیا علم لرونکي خلک او بې علمه خلک سره برابرېدلی سي؟" دا ښکاره او څرګنده ده.چي د عالم او جاهل تر منځ ډېر زیات توپیر سته. د علم په تر لاسه کولو سره او پر هغه باندي په عمل کولو سره انسان د شرافت لوړه رتبه تر لاسه کوي او د جهالت له کندو څخه راوزي، او که چیري یو انسان هر څونه ښه او نېک کارونه وکړي خو هغه کارونه د علم حاصلونکي په مقابل کښي هیڅ لوړه درجه نلري. هغه څوک چي په علم کښي ټول عمر ښه عمل او نېک کار کوي تر هغه چا چي په جهالت کي ښه عمل یا نېک کار وکړي ډېر ښه دی نو د غوره او نیکو کارونو په کولو کښي هم علم ډېر ضروري دی. د ټولي شپې له عبادت څخه به دا ښه وي چي یو څو ساعته په علم کښي چرت او فکر و وهي او د زده کړي په لټه یې سي تر څو هم خانته او هم نورو ته ګټه خني ورسوي. که چیري ناروغ ته درمل ورنکړه سي او درملنه یې ونسي مري. نو همدغه حال د زړه دی. که چیري زړه ته فقط درې ورځي علم و نه رسېږي نو مري. د زړه غذا علم دی. که چیري زړه د علم طلب ونکړي نو هغه ناروغ بلل کیږي، که څه هم دا ناروغي صرف هغه څوک حس کوي چي علم نلري، خصوصاً چي بیا د عالمانو په منځ کښي ناست وي، او دا بیا ښېله خبره ده چي یو څوک دي دا احساس نکوي چي د هغه زړه ناروغه یا مړ دی، ځکه چي هغه د دنیا په مینه او محبت کښي داسي بوخت وي چي خپل زړه ته یې هیڅ پام او توجه نه وي. د دې مثال داسي دی چي انسان که چیري په یو لوی جنجال کي اخته یا د نشې په حال کښي وي نو په دې حال کښي که چیري د ده یو خای ټپي سي او ټپ یې درد هم کوي خو دی یې حسولای نسي لیکن هغه وخت چي د ده څخه دا کیفیت لیري یا د ده ذهن له خپل مشغولیت څخه فارغه سي نو هغه وخت دی خپل د ټپ درد احساسولای سي په دغه ډول سره کله چي انسان مرګ ته نژدې سي د دنیا او د هغې نشه یې له زړه او ذهن څخه ووزي نو هغه وخت دی دا احساس کوي چي رښتیا د ده زړه څونه بې سېکه او مړ ژواندہ دی. نو علم هغه سرمایه ده چي د هغې په ټولولو کي هیڅ تاوان نسته او دا سرمایه به تر مرګ پوري ورسره وي او رشتیا هم دغه سرمایه په ټولولو او ذخیره کولو باندي ارزي.

د علم تر طلب وروسته انسان په ښه بد پوهیږي او بیا نود ی کوښښ کوي چي د بدو کارو څخه ځان وژغوري او ښو کارو ته لاس واچوي. خدای ﷻ هم پر هغه چا باندي مهربانيږي چي هغه د بدو کړنو څخه توبه وکړي او دغه توبه یا د بدو کړنو څخه د

خلاصون نېکبختي په باعمله علم سره حاصلېږي. انسان د شتو حفاظت کوي لیکن علم د انسان حفاظت کوي. شته چې خرڅ کړې کمېږي او علم چې خرڅ کړې ډېرېږي، شته غل غلا کولای سي مګر علم څوک نسي غلا کولای. شته غرور او علم حلم په انسان کښې پیدا کوي. هغه سړی چې د علم په لټون کښې وي هغه عالم دی او هغه څوک چې دا وایي چې ما علم تر لاسه کړی هغه لا جاهل دی که هر څونه عالم هم وي.

## د علم طلبولو ښېګڼې:

کامیابي او ښېګڼې د هغه چا لپاره وي چې هغه د کلک عزم او حوصلې خاوند وي. خپل هیواد او اولس یې پرېښودلی او په کوم بل ځای کښې علم حاصلولو په لار کښې ډول ډول ستونزې او تکلیفونه پر ځان وړي. او دا باید په یاد ولرو چې د علم د تر لاسه کولو په لار کښې ډول ډول ستونزې مخې ته راځي باید چې په هوښیاري سره دا ستونزې لیرې کړو او خپل درسونه پر مخ بوزو.

علم یوه خزانه ده او د دې خزانې کیلي سوال کول دي. د علم لپاره ډېر تر ډېره سوال او غوښتنه کول پکار دي. په سوال کولو کښې یا د یو شي په پوښتنې کښې هیڅکله شرم مکوئ. د علم په غوښتنه او پوښتنه کښې شرم کول د علم څخه د محرومیت سبب ګرځي او د سوال کولو ګټه په یوه وخت کښې څلورو کسانو ته رسېږي. اول پخپله پوښتونکي ته، دوهم و هغه چاته چې د سوال خواب یې ورکړی وي، دریم و هغه چا ته چې د دوی د سوال خواب ته یې غوږ نیولی وي، او څلورم و هغه چاته چې دوی او د دوی سوال او خواب خوښوي. جاهل ته پکار دي چې خپل پر جهالت باندې خاموشه ونه اوسي یعني باید پوښتنه وکړي او خپل جهالت لیرې کړي. په دغه ډول سره دې عالم هم پر علم باندې نه خاموشه کېږي. ناپوهانو ته دې سمه لار وروښوويي او علم دې ور زده کړي. دغه علم دی چې انسان و هر ډول لوېښت او شرافت ته رسوي. څینو پوهانو څه ښه ویلي دي چې د دوو خلکو پرحال رحم کول پکار دي. یو هغه څوک چې د علم په تر لاسه کولو اخته وي هغه ښه ذهن نه لري او علم نسي سم حاصولای او بل هغه څوک چې ډېر ښه ذهن ولري خو هغه علم نه حاصلوي.

یو عالم چې له خپل علم څخه د خدای ﷻ و مخلوق ته کومه ګټه ور رسوي د هغه مرتبه د نېک کرداره زاهد په نصیب هم نه وي. له دې امله تر هغه زاهد چې ټوله شپه یې عبادت کړی وي د یوه عالم مرتبه ډېره لوړه ده ابن عبدالحکیم پر امام شافعي صاحب باندې سبق وایه. هغه وایي یو وار ما د ماذدیګر آذان واورېدی نو مې کتاب بند کړ او د لمانځه لپاره ولاړ سوم نو امام صاحب راته و فرمایل چې تا کتاب ولې بند کړ؟ که چیرې ستا نیت سم او صحیح وي نو هغه کار چې تا اوس کاوه ډېر ښه وو تر هغه کار چې ته اوس ور رواڼ یې او کوې یې. یعني که ته د علم په ذریعه د عبادت په سمه طریقه پوه سې نو هغه وخت ستا عبادت قبلېږي او نور د اصلاح و خواته رابللای سې. د ژوندانه تر ټولو لوی جهاد د علم حاصلول او پر هغه باندې عمل کول دي.

## و نورو ته د تعلیم ورکولو ښېګڼې:

په هغه ډول سره چې علم حاصلول او خپل ځان له جهالت او بدو کارونو څخه ژغورل ضروري دي نو دا هم ضروري ده چې نور له بدو کارونو او جهالت څخه وژغوري. د علم رڼا و هرې خواته خپره کړي او په ښه ادب او نرمۍ سره و خلکو ته علم ور زده کړي. کله چې انسان په یو څه پوه سي. یو څه علم حاصل کړي، نو پر هغه باندې دا فرض کېږي چې خپل علم پټ نه کړي بلکې و نورو ته یې ور زده کړي. که داسې نه وي نو به د علم د زده کړې لړۍ ختمه سي. د علم د ختمېدو یوه معنی دا ده چې عالم به پاته نسي. تر دې حده پورې چې ناپوهان به پر هره مسئله باندې خوله خلاصوي خپله به هم بد وایي او و نورو ته به هم بد وربښي.

یو انسان به و یو بل انسان ته تر دغه بله څه ګټه ور ورسوي چې یا خو یو ښه خبره ور زده کړي او یا یې پر سمه لار روان کړي. اوس یو سوال دا پیدا کېږي چې آیا په علم کښې دا قدرت سته چې هغه زموږ څخه صالح او نېک عمله جوړ کړي؟ باید و ویل سي چې علم د یوه طبیب غوندې دی. د یوه طبیب خو دا کار دی چې یو ناروغ د مضرو شیانو د خوړلو په خرابۍ خبر کړي او د ده پر بدن او روغتیا باندې چې کوم خواړه بده اغیزه کوي دی د هغو د خوړلو څخه منعه کړي. تر دې وروسته ناروغ اختیار لري چې خپل د روغتیا د سمېدو لپاره د دې شیانو څخه پرهېز وکړي. که چیرې دی داسې ونه کړي او خپل صحت خراب کړي نو په داسې حال کښې طبیب دا ناروغ د دې شیانو د خوړلو څخه څنګه منعه کړي؟

نو د علم هم دغه حال دی د هغه د قوت څخه خو دا څرګندېږي چې هغه به د هر انسان څخه نېک عمله جوړ کړي او د ښه او بد فرق ور په ګوته کوي او د دوی سترګې ور خلاصوي او عبرت ورکوي چې دوی خیر او شر او د هغه آثار و وینی او وپېژني. نو علم تر هغه وخته پورې ګټه نه کوي تر څو پورې چې موږ یې پر ښو کارونو باندې عمل ونه کړو او له هغو کارونو څخه چې موږ منعه سوي یو پرهېز ونه کړو.

## آیا علم هم بد او ښه کېدلی سي؟

پر دې خبره به هر څوک حیران سي چې آیا علم هم بد کېدلی سي. مګر علم پخپله هیڅ بد کېدلی نسي. اوس دا کتل کېږي چې آیا کوم علم د یو عالم په حق کښې مضر خو به نه وي؟ مثلا د جادو علم یو علم دی لیکن د جادو څخه و مخلوق ته تاوان رسېږي او ښله فساده د دې څخه بل کوم کار نه اخیستل کېږي نو په دغه سبب د دې زده کول او و نورو ته ورښوول منعه دي. یا مثلا د نجوم علم دی چې د ستورو د ترتیب د واقعاتو علم کېږي او د نجوم د علم تصدیق قران هم کړی دی مګر کله چې د ستورو د ترتیب په نامه خلک د تقدیر او راتلونکي حال معلوموي نو په دې کښې بد خیالات پیدا سوه او دا منع دي.

علم ته هیڅکله په بده سترګه مګورئ. علم چې هر ډول سي ښه او د درناوي وړ دی. علم چې هر علم وي د هغه څخه په انسان کښې شرافت، لوی والی، نیکي او بزرګي پیدا کېږي. پاته (۵۴) مخ

ژباړونکی: ډاکټر پاینده محمد "ارغنداوی"

د روغتیا د نړیوالی ټولني ۲۷۵ لمبر رښتیا پاڼه

# ټر معیار کښته (خراب) او جعلي درمل

**ټر معیار کښته (خراب) او جعلي درمل څه شي دي ؟**

ټر معیار کښته درمل یا دواوي هغه جوړ سوي مواد دي چي د هغوی ترکیب او موثره مواد د نوموړي دوا د درست او علمي فورمول سره یو شان نه وي، څکه نو سم تاثیر نه کوي او په اکثره وختونو کښي د ناروغ لپاره مضر هم تمامیږي. ټر معیار کښته درمل د بې احتیاطی، انساني غلطیو، د کافي انساني او مالي منابعو د نه موجودیت او یا د جعل کاریو له کبله تولیدیږي.

جعلي درمل جوړونه د ټر معیار کښته درمل جوړولو د عملیې یوه برخه ده او فرق یې دا دی چي پر جعلي درملو باندې په غلطه سره نوم او د تولیدونکي مؤسسې نوم لیکل سوی وي، په داسې حال کښي چي د هغو په ترکیب کښي هیڅکله همدغسي مواد نه وي. لکه په نوم کښي چي یې یادونه سوې وي، او دا جعلي نوم لیکنه هم پر تجارتي درملو او هم جنریک درملو دواړو باندې کیږي. جعلي درمل کېدلای سي چي موثره دوايي ترکیب ولري او د تېر ایستلو په منظور یې پاکټ او یا بوتل د نورو مشهورو دواوو په شکل جوړ سي، یا هم هغه موثر مواد یې په غلط ترکیب سره پکښي وي او یا دا چي هیڅ موثر مواد پکښي نه وي او یا هم دا چي فعال ترکیبي مواد نې په کافي اندازه سره نه وي.

په شتمنو هیوادو کښي ډېر معمول جعلي درمل د نوو، لوړه بیه لرونکي هغه درملو د جملې څخه عبارت دي چي د ژوندانه د ډول د ښمون لپاره دي، لکه هورمونونه، ستیروئیدونه او انتي هیستا مینیکونه. په مخ پر ودې هیوادونو کښي ډېر معمول جعلي درمل د هغه ډولونو څخه جوړیږي چي د ژوندانه د تهدیدونکو ناروغیو لکه (ملاریا، توبرکلوز او ایدز) د تداوي لپاره استعمالیږي.

**د ستونزي اندازه یا کچه**

د متحده اضلاعو د خوراک او درملو د اداري د اټکل له مخي د نړیوال دوايي مارکیټ تر په سل کښي لس زیاد یې جعلي درمل جوړوي او دا کار په دواړو صنعتي او مخ پر وده هیوادونو کښي کیږي. همدارنګه اټکل سوي دي چي د هغو دواوو چي په غریبو هیوادونو کښي مصرفیږي په سل کښي تر پنځه ویشت زیاد یې جعلي یا ټر معیار کښته درمل دي. د دې ټکو د په نظر کښي نیولو سره په نړیواله کچه د جعلي او ټر معیار کښته درمل خرڅونکو ته په کال کښي تر ۳۲ بیلیونه زیاد امریکایي ډالره په لاس ورځي.

د دې ډول درملو تجارت په ځانګړي ډول په هغو مملکتونو کښي چي د دواوو د تنظیم او کنترول لپاره ضعیف کار کوي، د اساسي درملو ورانـدي کـول پکښي کم او یا درست نه وي، د بازار تنظیم پکښي نه وي موجود او د درملو بیه پکښي لوړه وي، ډېر رواج موندلی دی.

د دې سره سره یوه د هغه جعلي درملو څخه چي په زیاته کچه د انټرنټ د شبکې د لارې په صنعتي هیوادونو کښي خرڅیږي ویاګرا (د جنسي تقویې لپاره) ده.

د نړیوالي روغتیایي ټولني (WHO) د یوې څېړني له مخي چي په شلو هیوادونو کښې د ۱۹۹۹ م کال د جنوري د میاشتي څخه بیا د ۲۰۰۰ م کال د اکتوبر تر میاشتي پوري سرته رسولې ده، دا نتیجې په لاس راغلي دي چي د جعلي درملو په سلو کښي شپېته پېښي یې په غریبو هیوادونو او په سل کښي څلویښت یې په صنعتي او پر مخ تللو هیوادونو کښي واقع سویدي.

د ۱۹۹۹ م کال د اپریل په میاشت کښي یوازي د ټر معیار کښته درملو د ۷۷۱ پیښو راپور د نړیوالي روغتیايي ټولني د جعلي درملو د معلوماتو په کتاب کښي درج سویدی، چي د هغو په سل کښي اوه اویا یې د مخ پر وده هیوادونو کښي وه. د رقمونو تحلیل دا ښوولې ده چي د ۳۲۵ پیښو په سل کښي شپېته یې په درملو کښي موثره فعال دوايي مواد نلرل. د یوې اخیرنۍ څېړني له مخي چي د لانسیت په مجله کښي چاپ سوېده، ویل سوي دي چي د ارتې سونات د

دواوو (چې د ملاریا د ناروغۍ د هغو پېښو په درملنه کښې استعمالیږي چې عادي د ملاریا ضد درمل تاثیر نه پر کوي) په سلو کښې تر څلوېښت زیات یې کومه موثره دوایي ماده نه درلودل څکه یې نو کومې ګټې نه لرلې.

په ۲۰۰۰ کال کښې په متحده اضلاعو کښې د ګلاکسو سمیت کلین کمپنۍ دا و موندل چې د کامبي وایر (چې لامبودین او زیدوودین په ترکیب کښې لري) د هغه تر شک لاندې بوتلونو کښې په واقعیت کښې بله دوا یعنې ذیاجن (اباکاویر سلفات) موجود وه او جوړونکو یې په غلطه سره د لمړنۍ ګراني دوا لېبل یا کاغذ پر دې بوتلونو منښولي و. او دا درمل داید زد درملنې لپاره استعمالیږي او دوهمي درمل هم د ایډز لپاره استعمالیږي. خو موثریت یې ډېر نه دی، ارزانه دي او د دې په څنګ کښې یې د حساسیت منځته راوړونکي تاثیرات تر لمړني درمل زیات دي.

### د تر معیار کښته او جعلي درملو د استعمال نتیجې :

تر هر څه لومړی تر معیار کښته او جعلي درملو استعمال هغه تاثیرات نه لري کوم چې مور یې د نوموړي ډول درملو څخه توقع لرو او د دواوو په مقابل کښې د ناروغیو د مقاومت د زیاتوب سبب کیږي او په ډېرو زیاتو وختونو کښې د ناروغانو د مرګ سبب کیږي په ۱۹۹۵ م کال کښې په نایجریا کښې د دماغ د پوښ د مکروبي ناروغۍ د پراخې خپرېدونې په وخت کښې و ۵۰۰۰۰ خلکو ته د دې ناروغۍ واکسین ولګول سو، چې دا واکسین د یوه بل هیواد لخوا د بسپنې په ډول ورکول سوی و او ورکونکي هیواد فکر کاوه چې دا به ښه او موثر واکسین وي خو په اصل کښې د دواوو کمپنیو په جعلي ډول جوړ کړی و. د دې کار نتیجه دا سوه چې ۲۵۰۰ خلک مړه سول.

د پاراستیامول او ټوخي د یو ډول شربتو د خوړلو په نتیجه کښې چې د ای ایتلین ګلایکول (چې یوه زهري کیمیاوي ماده ده او په انتي فریز کښې استعمالیږي) یې درلودل په هایټي کښې په ۱۹۹۵ کال کې ۸۹ نفره او په هندوستان کښې په کال ۱۹۹۸ م کښې ۳۰ نفره ماشومان مړه سول.

د هغې خېړنې په نتیجه کښې چې په جنوب شرقي اسیا کښې په ۲۰۰۱ م کال کښې سرته ورسېدل دا وښوول سوه چې د ملاریا پر ضد د ۱۰۴ ډوله درملو په سلو کښې ۳۸ یې چې په درملتونو کښې خرڅېدل اصلاً هیڅ دوایي موثره ماده نه درلودل او څکه نو د داسې مرګونو چې مخنیوی یې کېدای سوای سبب سول.

په کال ۱۹۹۰ م کښې په کمبودیا کښې ۳۰ نفرو هغه وخت خپل ژوند د لاسه ورکړ چې د ملاریا لپاره تیار سوي جعلي درمل یې وخوړل، په اصل کښې دا درمل سلفادوکسین ـ پیریمیتامین (چې د ملاریا ضد یو ډول زاړه او د لږ تاثیر لرونکي درمل دي) وه او په غلط ډول د ارتوسونات په نوم خرڅېدل.

### ګواښونه :

په اکثره مخ پر وده هیوادونو کښې د نظم او اداري د ضعف له کبله د واردو سوو او کورنیو جوړو سویو درملو د کیفیت، مصئونیت او موثریت تضمین نه سي کېدلای پر دې برسېره په دې هیوادونو کښې د دواوو قاچاق او په غیر قانوني توګه واردول ډېر زیات دي.

د معیار نه کښته او جعلي درمل نه یوازي دا چې په دې هیوادونو کښې خرڅیږي بلکې همدارنګه صادر او یا د دوهم خل لپاره صادریږي. په دې دلیل چې د اکثرو صنعتي هیوادونو څخه صادري سوي دواوي د کورنیو دواوو په پرتله ښه نه تنظیمیږي او د آزاد تجارتي زون د لاري و مخ پر وده هیوادونو ته صادریږي، نو دا حالت نور هم وخامت پیدا کوي.

د دې لپاره چې د درملو اصلیت وپوښل سي دوباره کاغذ پر منښول کیږي څیني تګلاري جوړونکي اوس په دې نظر دي چې د درملو تنظیم د هغوی د تجارت په مقابل کښې غیر ضروري مانعه جوړوي. او باید و کښتني حد ته راټیټ سي. د دواوو جوړولو صنعت باید معیاري ونه ګڼل سي دا څکه چې مصرف کوونکي او توصیه کوونکي دواړه په دې قادر نه دي چې د دواوو کیفیت، مصئونیت او موثریت معلوم کړي او نتیجه یې د ناروغانو د سلامتی لپاره مضره ثابتیږي.

د عوضي دواوو لکه هیربال محصولات یا په عامه ژبه یوناني درملو د تجارت زیاتېدل په ملي او نړیواله کچه دا معضله نوره هم پېچلې کړېده. په اوسني مهال کښې د اروپایي، شمالي امریکا او اسیایي هیوادونو له خوا په زیاته اندازه هیربال دواوي واردیږي. د بله طرفه د هیربال درملو استعمال او تولید په پراخه کچه کوم نظم نه لري. او نه یې هم د مصئونیت او دوایي ارزښت په هکله تضمین کېدلای سي.

### هغه عوامل چې د جعلي درمل جوړولو سره مرسته کوي :

د جعلي درمل جوړېدل و لویو فابریکو او ساختمانونو ته اړه نه لري، د جعلي درملو اکثره جوړونکي خپل کار او بار په عادي کورني سامانونو سره په کوچنیو کورونو کښې او یا د

کور د شا په کوټو کښې او حتي کله کله د ونو و سیوري ته سرته رسوي. د جعلي درملو جوړول د دې لـه کبلـه چې درملو ته ضرورت زیات دئ او د دې درملـو د تولیـد مصارف کم دي د ډیرو پیسو د په لاس راوړلو یو کسب دئ.

پـه اکثـرو هیوادونـو کښـې د قـوي قـانوني او عـدلي مقرراتو نه موجودیت د جعلي درملو جوړونکي نـور هـم تشویقوي دا ځکه چي دوی د عدلي تعقیب او څارني د کوم تهدید او بیري سره مخامخ نـه دي. کلـه چـې د دواوو بیـې لـوړې وي او د نرخونـــو فـــرق یـــا تفـــاوت د معـــادلو محصولاتو تر منځ موجود وي نو په دې وختونو کښې د دواوو رانیونکي کوښښ کوي چې د درملو د وړاندي کـوني د نورمال سیستم څخه دباندي د درملو په لټه کښي سي ځکـه نو فقر د تر معیار کښته درملـو د تولیـد او مصـرف د عمـده عواملو څخه شمیرل کیږي.

**د خرابو یا غیر معیاري او جعلي درملو پر ضد په ملي سطحه هڅي:**

قـــوانین د درملـــو د تنظـــیم اســـاس جـــوړوي، درمـل بایـد مصـئون، مـوثر او د ښـه کیفیـت درلـودونکي وي تر څو هغه تاثیر چي ځني غوښتل کیږي منځته راوړي. د دې اهـدافو د تـامین لپـاره اړه لـرو چـې د درملـو د تنظیم ملي اداره چي ښـه خواکمنـه وي او ضـروري انساني او نـور منـابع پـه واک کښـي ولـري جـوړه سـي تـر څـو د درملـو تولیـد، تورېـد، توزیـع او پلورنـه پـه ښـه ډول کنټرول کړي.

حکومتونه داسي تګلاري منځته راوړي چـي د هغـو پـه عملـي کولـو سـره اختلاس او جنـایي فعالیـت کـم کـړل سي او د مختلفو ادارو تر منځ د همکارۍ حس تقویه سي لکـه د درملـــــو د تنظـــــیم اداره، پـــــولیس، د ګمـــــرک خدمتونه او محکمې تر څو په موثر ډول د درملو مارکیـت یـا بـازار کنټـرول او د قـوې پـه زور د درملـو د تنظیم چـاري عملي سي.

د دې کبله چي د هیوادونو تر منځ د تجارتي سـرحداتو ازادېدل د جعل کارۍ د زیاتېدلو سره کومک کوي ځکه نـو په نړیواله کچه دوامداره او سیستماتیک تلاښونو تـه اړه سته، چي هغه د پر وخت او لازمو معلوماتو د تبـادلې او د اقـداماتو او کوښښونو د متوازن کیدلو څخه عبارت دي تـر څـو د دې پیښو مخه ونیول سي.

ځیني هیوادونو ډیر جدي تلاښونه شروع کـړي دي تـر څو د درملو د جعل کارۍ مخه ونیسي، د مثال په ډول په تیر کال کښي په چین کښي د درملـو دولتـي اداري ۱۳۰۰ غیـر قانوني فابریکې وتړلې او د جعلي درملـو د واقعـاتو د تحقیـق لپاره یې ۵۷ میلیونه دالره لګولي دي.

**د غیر معیاري او جعلي درملو په هکله د نړیـوالي روغتیـایي ټولني هڅي:**

په عمومي توګـه د نړیـوالي روغتیـایي ټـولني (WHO) هدف دا دئ چي د ښه کیفیت لرونکي اساسي درمل په منظم ډول و نړیوالو ته ورسول سي. WHO د هیوادونو سره مرسته کوي تر څو د درملو په هکله قوانین جوړ کـړي، ښـه درمـل جـوړ کـړي، پـه ملـي کچـه د درملـو تنظـیم منځتـه راوړي، د درملـو د تنظیم کوونکـو ادارو تـرمنځ د معلومـاتو تبادله تقویه کړي او د درملو د څېړنې هڅې ګړنـدی کـړي.

همدارنګه د هیوادونو سره یو ځـای د دې لپـاره کـار کوي تر څو د درملو د کیفیت پـه هکلـه د درملـو د وړانـدې کولو په ټوله سیستم کښي اطمینان منځته راسي.

د هیوادونـو لپـاره د دوایـي محصـولاتو د ارزیابـی او راجسـتر کولـو، د درملـو د توزیـع، د اساسـي او لابراتـوري ټستونو په هکله لارښود لیکونـه جـوړ سـویدي، د ښـه درمـل جوړولو د عملـي زده کـړې لپـاره پـه افریقـا او اسیا کـې ۹ ورکشـاپونه دایـــر ســـوي دي او د (WHO) د ښــه دوایـــي محصولاتو د جوړولو د عملـې ۲۰ د زده کـړې موډلونـه پـه انګلیسـي ژبـه برابـر سـویدي او د لاتـین امریکـا لپـاره پـه هسپانوي ژبه ژباړلې سـوي دي. د دې مـوادو CD ګاني په چینـایي او جاپـاني ژبـو سره برابـري سـوي دي او د ۴۸۰۰ حکـــومتي او د درملـــو د تنظـــیم د ادارو پـــه واک کښـــي ورکول سویدي.

د ښه درمل جوړولو د عملي موډلونه د درملو د تنظیم د زده کړې لپاره په منظمه توګه استعمالیږي چـي د AIDS د درملو راجستر هم په بر کښي نیسي. د WHO لخوا د ایدز، ملاریا او توبرکلوز د درملني په هکله اختصاصـي ګروپونـه پـه پراخه توګه د درملو د کیفیت په لوړولو کښي مرسـته کـوي، دوی درمل او د هغوی جوړونکي پلټي او د هیوادونو لپاره د هغو لستونه چي د WHO د معیار سره برابـروي جـوړوي تـر څو په نړیواله کچه د ښه کیفیت لرونکي درملـو رانیـول ډېـر رواج سي. د هیوادونو لخوا د کومکونـو د غوښتلـو ډېرېـدلو WHO دې ته اړه کړېده چي خپل کارونه د جعل کارۍ پـر ضـد او د درملـو د کیفیـت او مصـئونیت د کنټـرول پـه هکله زیات کړي تر څو مصئونه او موثري درملني ته د خلکـو لاسونه ورسیږي.

✡ د ش (اخګزي) لیکنه

# د ګډ ژوند لارې چارې

د کائناتو خالق په خپل قدرت او اراده د ټولو مخلوقاتو د تولد او تکثر د نظام د پر مخ بیولو لپاره نر او ښځه پیدا کړل که داسې نه وای نه وای سوې نو هیڅکله به یو ژبروح دوه سوې نه وای. او په طبیعت کښې به نیمګړتیا او خلل را پیدا او د هاند او هڅو لړۍ به ټپه ولاړه وای. د پخوانیو په اند یوازې انسانان او حیوانات د تولد او تکثر چارې یو د بل په مرسته مخ ته بیایې او همدغه نر او ښځه ده چې دبابا آدم ــ څخه تر نن پورې یې د انسانې تولد لړۍ روانه کړې.

مګر نن پر مختللو علومو دا په ډاګه کړېده چې نباتات هم دغه خانګړتیا لري. حضرت محمد فرمایي نکاح (واده) زما له سنتو څخه ده او چا چې د دغه سنت له بشپړاوي څخه سر غړونه وکړه زمونږ د ډلې څخه نه دی.

حقیقت دا دی چې واده د نر او ښځې لپاره د یوه ټولنیز تړون بڼه لري چې د هغو په مرسته دواړه پخپله خوښه ټولنیز او جنسي اهداف د بشپړتیا تر پلې رسوي. د ګډ ژوند په لارو چارو کښې ښځه او نارینه بېلابېل نظرونه لري او د دواړو په اند نې اهمیت او ارزښت جلا جلا دی. د مثال په ډول کله چې نارینه په دغه اړوند فکر کوي، نو په ذهن کښې یې داسې کور راګرځي چې له اطمینان، سکون، هوساینې، سوکالې او خوشحالۍ څخه ډک وي. چې د کار او بار له ستړیاوو څخه ستړی کور ته ورستون سي، ښځه ورته په ورین تندي هر کلې او ښه راغلاست و وایي. د ښځې د خوشحالیو او خواخوږیو ډکې خوږې خبرې نه یوازې دا چې د ژوند د ملګري ستړیاوې لیرې کوي بلکې بیخي یې له منځه وړي. حکه د هغه هیله همدا وي چې ښځه ئې د با اعتماده او باورې ملګرې په څېر د ژوندانه په دغه اوږده پړاو کښې پر اوږه پر اوږه ولاړه وي او په جذباتو او ذهني انتشاراتو کښې ورسره مرسته وکړي.




د دې برخلاف کله چې ښځه واده سي لومړۍ او زغرده غوښتنه یې په ذهن کښې د بشپړې آزادۍ، خپلواکۍ او که چیرې یو څه تعلیم او پوهه ولري د کور د نورو غړو په پرتله یې د برترۍ د احساس هیلې وي او دا هیلې یې څکه څېځاندي وي چې له کوچنیوالي څخه تر پېغلتوب پورې یې د بل تر لاس لاندې دې ژوند تېر کړی دی. د کور د ښه والي او بدوالي پر لور کوم خانګړې فکر نه لري یوازې او یوازې یې پورته درې اصله په ذهن کښې خطور کوي. دا ښله خبره ده چې تر واده وروسته همدا ښځه د کور د پاکوالي او اخلې پخلې چارې پر مخ بیایي

خو دغه هر څه له مجبورۍ ورخې څخه کوي. ډیرې لږ ښځې به داسې وي چې د کور کارونه په بشپړه زړه ورتیا او لېوالتیا سره سرته ورسوي. دا منو چې په ذهن کښې یې دا غوښتنه

موجود د وي چي زه دي کورني چاري په ښه ډول تر سره کړم او د ځان لپاره خوشحالي او لوړ ځای پیدا کړم خو د دې سره سره زموږ د ټولني خینـي بـې تجربې او ناپوه ښځي چي د ګډ ژوند لـه اړتیـاوو او اصـولو نـاخبره دي د خپـل ژوندانه له خوښیو، خوشحالیو او رنګینو رڼاوو ډکي ورځـې د داسـي غوښتنـو پـه سبب چي هغه د مېړه په واک او اختیار کښي نه وي په توره تیاره بدلوي او د خپل ژوندانه په دغه اوږده سفر کښي یا پر نیمه لاره پاته سـي او یـا هـم لـه ګړنګـه ځـان وغورځوي چي د دې هر څه پړه زموږ د ښځني ټولني پر مور او پلار لوېږي ځکـه هغوی خپلي لور ته د ګډ ژوند لاري چاري او اړتیاوي نه دي ورښـوولي او د دغـه اوږده سفر لپاره یې د روښنایي یو څراغ نه دی ورکړی، پـه هـر حـال اوس راځـو دې ته، هره هغه ښځه چي وغواړي خپل ګډ ژوند په خوشحالي، سوکالي، آرامي او پوره مینه تېر کړي او د مېړه په زړه کښي ځای ونیسي، پر ګرانه وي. تـل یـې د ښي په غېږ کښي ونیسي باید دغه لاندي ټکي په پام کښي ونیسي، څـو دغـه ګـډ ژوند یې نېکمرغه، خوشحاله او د ارمانونو د پوره کېدلو وسیله وګرځـي، پـه دغـه برخه کښي تر ټولو ښستیز ټکی دا دی چي باید خپل مېړه په دې وپوهوي چـي لـه ځان نه زیات راباندي ګران یې او بېله تا څخه دغه ژوند راته بې ارزښته دی ځکـه چي په ګډ ژوند کښي د ښځي او مېړه پر مخونو سل ډوله اغیزې او تاثیرات ځي او راځي، تو تر ټولو زیات اغېزمن هغه تاثیر دی چي کور ته د مېړه د راتلو پر مهال د ښځي پر تندي ځلیږي مطلب دا چي کله مو مېړه کور ته راننوځي (په داسي حال کښي چي د ژوندانه د روزګاریز او ذهني ستړیاوو ستړی وي) باید په ډېـره مینـه او لېوالتیا یې روغبړ او هرکلی وکړي، په داسي حال کښي چي خوله مو له خنـدا او مخ مو له خوشحالي څخه ډک وي باور وکـړئ چـي یـوازي بـه یـې د ستړیاوو هېرېده لا څه بلکي ستاسو لپاره به یې په زړه کښي لوړ ځای هم پیدا سي بـرخلاف د دې که تاسي د خپلي ناوزګاري له وجه د هغه هر کلی ونه کړئ او راتګ ته یـې لېوالتیا ونه ښیاست هغه به پـه شعوري ډول دا وانګیـري چـي ګـواکي زمـا هـیڅ ارزښت ورسره نسته، په داسي حال کښي چي ناربنه په فطري ډول ځان ډېر مهـم ګڼي نو کېدای سي د خپل ضمیر د تسکین او غـرور د پـر ځـای سـاتلو پـه غـرض دباندي مخه کړي او دغه کار به ستاسي پر ژوند بدي اغیزې وښندي چي دغـه هـر څه د مېرمني پر بې تجربګي دلالت کوي.

د مثال په ډول به داسي ښځي درته وښـیم چـي ډېـري پـوهي د پـوره سـواد څښتني د کور او کاله په چارو کښي پوره لاس لري او دغه هر څه په پوره همت تر سره کوي خو بیا هم خپل مېړه نـسي خوشحاله کولای چي ستر لامـل یـې د ګـرم جوشي او توجه د اظهار له فن څخه ناخبرتیا ده پوهي او ماهري ښځـي هغـه دي چي خپلو مېړونو ته دا جوته او ښکاره کړي چي د هغو د خوښیو هیله منـدي دي او هغه کارونه چي مېړه یې په تر سره کېدو خوشحالیږي باید وکړي دغه خبره که له اخلاقي پلوه سمه ده که نا سمه موږ یې نه څېړو خو یـوازي دونـده ویـلای سـو چي مېړه دا غواړي چي ښځه مي زما په رایه وچلیږي او فکر کوي چـي رایـه مـي ورته ارزښتمنه هم ده.

بله خبره د اده چي باید د مېړه کار او بار او دندي ته په درانـه نظـر وګـوري، کېدای سي تاسو او مېړه مو په دې خبره پوهېدلي یاست چي هغـه د غـوره او ښـو ورتیاوو څښتن دی او موجـوده دنـده یې د دغه ورتیـاوو نمایندګي نـه سـي کولای بیا هم تاسي د هغه د کار و بـار سره مینه او زړه پورتیا وښیاسـت او پـه دې عقیده ولرئ چي د کار نوعیـت د سړي و شخصیت تـه تغیـر نـه سـي ورکولای په هر کـار او هـره مشـوره کښـي ورسـره مرسـته او خواخـوږي ښکاره کړئ ځکه د هغه د کـار او بـار سره مینه او لېوالتیا عینـا د هغـه سـره مینـه او زړه پورتیـا ده نـو بایـد هـره مشـوره چـي ورسـره کـوئ یـې پـه هغه کښي ډېره پاملرنـه وکـړئ خنـي بیربړئ مه!

خپل عقل او پوهه مو دغه مهال په کار واچـوئ دغـه کـار بـه مـو نـه یوازي له هغو څخه بـار سـپک کـړي بلکي د هغه په زړه کښي به یو ځانګړی ځای هم پیدا کړئ دغه مهال مو مېړه د نورو خلکو او دنده یې د نورو دنـدو سره مه پرتله کوئ چي ستاسو تر ژوند بې ژوند ښه او تر تاسو یې بهتره کـار و بار او خوشـحاله ژونـد پـه برخـه وي ځکه په دغـه کـار مـو د مېـړه پـه زړه کښئ له تاسو څخـه ګیلـه راولاړیـږي چي ستاسو دګډ ژوند د پر مخ بیولـو خنډ ګرځـي او پـه ګـډ ژونـد کښـي ستونزي رامنځ ته کـوئ بایـد پـه دې پـوه سـئ چـي د مېـړه پـرمختګ او بربـادي پـه مېـرمن پـوري اړه لـري ستاسـو نیکـي مشـورې، تسـلی او ډاډګیرنـي هغـه د نـامتو، نومیـالیو او بریالیو خلکو په لیکه کښي درولای سي او ستاسو د تنـدي ګـونجي او تریوالـه هغه پسپاني، ماتي، لټي، سستي او د نا اهلي ژوري کندي تـه غورځـولای او له خپله ژونـده یـې بـې زاره کـولای سي کله چي مـو مېـړه خپـه او غلـی ناست وي په دې ورته تینګار مه کـوئ

چې له تاسې څخه خپه او مرور شي او یا یې بدې اسې

په پښتو کښې متل دی: چې ... سر زر سوداوي) که تاسو دغه چوپتیا و خپل لوري ته وبولی چې ګواکې بدې یې ایسی یا مینه نه درسره لري لا به هم خپه سي ځکه د نارینه عجیبه طبیعت دی ... کله یې مینه تر سره انکار تـوده. کلـه تـر کنګـل یخه، کله یې زړه تر موم نرم او کله تر ډبري کلک وي چې لامـل یـې د ټـولنیزو حالاتو اغېزه ده. ښځې ته لازمه ده چې د هغه د طبیعت او مزاج سره په هر وخـت او هـر حـال کښـې ځان بلد کـړي او د دغسـې فکرونـو او چورتونو پـر مهـال ورڅخـه پـه ډېـره خواخـــوږي د خپګـان علـت او لامـل وپـوښتي ـ تسـلی او ډاډګیرنـه ورکړي چې په دغه کار به تاسې د هغـه پـه زړه کښـې غـټ ځـای پیـدا کـړی وي، ښیني خبرې سړي ته سپکې او بسیطې ښکاري اما اغېزې یـې تـر غرونـو هـم درنې وي

بله خبره چې ستاسو پام وراړه وم هغه د مېړه او د هغه د کورنـۍ او خپلوانـو درناوی دی، تاسو باید د خسر، خواښې، لېوروڼو، اندرندو، یوښو او نـورو خپلوانـو سره ښه په ورین تندي چال چلن وکړئ. د دوی تر منـځ اختلافـات رامنـځ تـه نـه کړئ، درواغ نه وایاست، د کور خبرې دباندې او د دباندې خبـرې کـور تـه رانـه وړئ، او تل د مېړه او د هغه د کورنۍ په ننګه ولاړې و اوسئ چې په دغه کـار نـه یوازې تاسې د ټولو خپلو خپلوانو زړونه ګټلای سئ، بلکـې د خپـل مېـړه پـه زړه کښې هم د خوښۍ او درناوي ډک ځای موندلای سئ چې په راتلونکې ګډ ژونـد کښې به مو اسانتیا رامنځته، د ستونزو مخه به مو نیـولې سـوې وي او د نېکمرغـه ژوند وسیله به مو سي



بله خبره چې ډېـره ضـروري ده هغه دا چې لکه څنګه چـې د واده پـه لومړي پړاو کښې ښځه او مېړه یـو لـه بله سره زیاته مینه لري که وغواړئ چې دغه مینه مـو پـه زړه کښـې تلپـاتې، ژونـدۍ او څپڅپانـده وي، بایـد میانـه روي غـوره کـړئ او ډېـر ازادانه چال چلـن ونـه کـړئ او پـه هـر کـار کښـې د یـوه او بـل خوښۍ ته فکـر وکـړئ نو خپل ارزښتونه به مو تل همداسې پـر ځـای پاتـه وي د نارینـه دا غوښتنه ده چې ښځـه یې د ښځینه خوبونـو، نـازونو، مکېزونـو او جـذبو څرګندونـه وکړي خو نه د بـل چـا پـه وړانـدې چـې دغـه د مېـړه د شخصـیت او ځانګړتیا لـوی تعریـف او پېژنـد ګلوی ده. که څه هم دغه خیـره د مېړه پـه عمر او طبیعت پورې اړه لـري خـو د نارینه تل دا غوښتنه وي چې ښځه یـې د درانه خوی څښتنه او د هغـه مطیـع الفرمانه واوسي نو مېړه هـم ورسـره مینه کوي او دغـه د ګـډ ژونـد لاري چارې ستاسو د تلپاتې ارزښت او ګـډ ژوند د خوښۍ لامل ګرځي.

---

- ـ ښځه ډېر ښه او وروستی آسماني سوغات دی
- ـ ښځه د سمندر په شان ده. چې د ډېر کوچنې فشار پـه وړانـدې طاقـت نـه سـي کـولای خـو ډېـر درانـده بارونه وړي
- ښځه فرشته ده چې پـه کوچنیوالي کښـې ماشـوم پـالـه ده، پـه ځوانـۍ کښـې زمـوږ خوشـحالوونکې ده او پـه زوړتوب کښې زموږ د کلي ډاډګیرنه ده
- ښځه یوازینی مخلوق دی چې سپېڅلی عشق پېژني
- ښځه د پیدایښت د ټولو رازونو خزانه ده.
- ښځـه هغـه غوټۍ ده چې د غـونچې پـه وخـت کښـې د خوښېـدو وړ ده، د غوړېـدو پـه وخـت کښـې د مینـې او محبت وړ ده او کله یې چې ګلان مړاوي سي د درنـاوي وړ ده.
- که چیرې ښځه نه وای او د هغې مسکا د ژوند تیـارې روښـانې نـه کـړي. ټـولې خوشـحالۍ او ښکـلاوې بـې روحه کېږي
- ښځه داسې کتاب دی چې بې لـه مهربانۍ او مینـې نـه لوستل کېږي

له ویري ځخه د هغه د بدن وینه په وچېدو وه، په ناسته به یې زنګنونه داسې ورېږدېدل لکه د مېرګي حمله چي پر را روانه وه.

په ښار کښي د شر او فساد د شروع کېدو څلورمه ورځ وه، ټول بندیز به د لږ وخت لپاره سهار لیري کېدی او د لږ وخت لپاره ماښام، چي ټول بندیز به لیري سو نو ځینو خلکو به ژر ـ ژر د ورځنیو اړتیاوو شیان اخیستل او ځینو به ژر ـ ژر اړ دوړ کاوه، اور به یې لګاوه، خلک به یې په چاقوګانو وهل، څو کسان چي به یې ووژل نو تر دې وړاندي چي ټول بندیز ولګیږي په خپلو کورونو به ننوتل، په "بمبی" کښي تاوده ـ تاوده خبرونه او تودې ـ تودې ویني پرله پسې بهېدې، خو راډیو او تلویزیون بیا هم پرله پسې همدا اعلانونه کول چي حالت په کنټرول کښي دئ او مخ پر سمېدو دئ.

د دې لپاره چي حالت نورمال وښيي له پرون راهيسي محتاته چي و او لکه وېرېدلی چي و، دا چي په اورګاډي کښي نور خلک هم وو نو هغه پرېکړه نه سوای کولای چي کومي ډبې ته ور پورته سي، ځکه اکثریت د هندوانو وو، دوه، دوه، څلور، څلور هر ځای ډله، ډله ولاړ وو، هغه لاندي ولاړ و خو چي اورګاډی روان سو نو یو دم په منډه ورپورته سو، هغه یوې داسي ډبې ته ور پورته سو چي نور څوک پکښي نه وو. هغه په خیر شاوخوا ته وکتل هیڅوک نه وو، بیا د ډبې په پای کښي پر یوه څوکۍ باندي کښېناست، دلته یې نو درسته ډبه تر سترګو لاندي وه، کله چي اورګاډی روان سو نوا یله هغه د ارامۍ ساه واخیسته

بیا نابېره د ډبې له هغه بل کونج ځخه یو منډو را څرګند سو، د یاسین حواس والوتل، پر ځنګنو یې یو ځل بیا مېرګي وځغلېد، هغه ټیټ سو او تر څوکۍ دومره لاندي سو، چي که هغه نفر راغلی هم وای نو



# ويره

ليکنه ـ هندي ليکوال : ګل زار
ژباړن : نثاراحمد آريا ـ کندهار

سیمه یزي اورګاډي هم تر ډېره چلېدلې، که څه هم اکثره ډبې به یې تشي وې، خو دا چي پر پټلۍ باندي لوېدلې رڼا رابښکاره سوه نو په څلور ورځنۍ یکنواخته چوپتیا کښي یو څه حرکت را پیدا سو، د اورګاډي پټلۍ ته نژدې کلیو کښي چي کومي چوپتیا پښې ټینګي کړي وې هغه چي د اورګاډي د تېرېدو له دربې ځخه د څه مهال لپاره ولړزېدی نو هغه ته یو ځل بیا د ژوند هیله ورپیدا سوه. یاسین په داسي حال کښي چي هغه رغ ته یې غوږ نیولی و، پورته سو او ویې کتل چي ښایي اورګاډی را رسېدلی وي، نن یې پوره پنځمه ورځ وه چي هغه له خپله کوره ورک و، هغه له ځانه سره فکر وکړ چي نور خو به یې نو زغم او تمه هم پای ته رسېدلې وي او د هغه لټون به یې پیل کړی وي، ورځ په تمامېدو چي د یاسین زغم پای ته ورسېد، د ماښام ټول بندیز چي څنګه لیري سو نو هغه سملاسي په تیاره کښي ځان د اور ګاډي تمځای ته ورساوه، په تم ځای کښي چوپه چوپتیا وه خو اشارو د اورګاډي د راتلو خبر ورکاوه اورګاډی ډېر ورو تم ځای ته رانووت، په پخواني انداز باندي نه و، بلکي داسي و لکه ده کولای سوای چي سملاسي تر هغه څوکۍ لاندي پټ سي او یا ورسره سینه په سینه سي، د ډبې ور لیري نه و، خو دا چي اورګاډی ورو سو، او بیا هم هغه سړی ... ناڅاپه هغه سړي پر خپل ځای باندي جګ ودرېد او شاوخوا یې وکتل، دا چي پر څېره باندي یې د ویري نښي نه سته نو هغه خامخا هندو دئ، د یاسین لمړی غبرګون همدا و، هغه د پای وره ته ورغلی او هلته ودرېد، باد د هغه ځادر د پړې سوي بیرغ غوندي رپاوه، هغه یو ګړی د بهر ننداره کوله خو بیا داسي ښکارېدی لکه له یو شي سره چي زور ازمويي د یاسین له خایه سم نه ښکارېدی چي هغه څه شی راجلا کوي، هغه یو شی ور پوري واهه او راکشاوه، ناڅاپه د یو زنګزده ور ځخه ګغ پورته سو، او له یو زوروور ګړبې سره بند سو، ښه و د یاسین له خولې ځخه چیغه ونه وته، که نه له دې رغ ځخه هغه نفر خپله هم ټکان وخوړ، هغه شاوخوا وکتل او دې لور ته یې تر ډېره کتل چي یاسین پټ و، یاسین ته شک ورولوېد چي هغه خو به لیدلی نه وي؟ او یا ستمی خو به یې نه وي اورېدلی؟ د هغه سړي زور ازمویلو هغه ته بل وحشت په زړه کي

ورواچوه، هغه دا چې که چېري سره لاس او ګرېوان سي تو دي به د هغه مقابله وکړای سي! هغه سړی تېر سو د هغه بل لور په وره کښي ودرېد. اورګاډي د "کيشوري" يو وېران تمځای ته ورننووت. چي اورګاډي تم سوی وای نو ښايي هغه تا سوی وای خو دا چي دا د ټول بنديز سيمه وه نو اورګاډي ونه درېد. همدا د ټول بنديز سيمه تر ټولو محفوظه وه ځکه که نور هيڅ نه و نو پوليس خو يې درلودل. او اوس خو يې پوځيان هم ورته راغوښتي وو. د ښار په پسات خپلو سيمو کښي د برګ درشيو پوځيانو چي د توپکونو خولې يې د بازار لور ته نيولي وې. ډکي لارۍ هر لور ته تر سترګو کېدلې. د پوليسو خوند تللی و. نورله هغوی ځخه ځوک نه وېرېدل. خلکو په لوی زړه پر پوليسو د سوډا د اوبو بوتلونه. د تېزابو بوتلونه او ډبري اورولې. پوليسو که به اوښکي بهيونکی ګاز هم پر پاسه نو هغوی به په لانده دسمال راپورته کاوه او هغه به يې بېرته پر پوليسو ورغورځاوه. په "تاکاساکي" کښي چي کله هغې ښکرې ته اور ورولوېد چي ده کار پکښي کاوه نو پوليسو څه وکړل؛ بس ليري ولاړ وو ننداره يې کول او هغوی له تنکو کوځو ځخه په منډه د هغو ګېرجونو لور ته وتښتېدل چي د يو او نيم سوځېدلو موټرونو اسکلېټونه پکښي پراته وو. په هغه ورځ دوي اته، نهه کسان وو چي د پټېدلو لپاره يې منډي وهلې، د "بهاو" يې کور ودان، هغه يې تر بغل ونيو او د چاېو په پښې کښي يې پټ کړ. بهاو پوهېدی چي زه مسلمان يم، هغه خو هندو و، هغه ولي خغستل! هغه ويل چي که د خلکو سر ته د وينو توپولو جنون راسي نو بيا هغوی دومره وخت نه لري چي له چا ځخه وپوښتي چي نوم دي څه دی! د هغوی تنده يوازي په وينه او اور باندي ماتېږي، اور واچوه، وې واهه، لوټ تالان ګډ کړه، د هغوی اور هغه وخت سړېږي چي په مځکي يې هيڅ نه سي پاته

د دويم وره دربې هغه ته ټکان ورکړ، د ډبې دواړه شانتي ورونه هغه سړي ټړلي وو. هغه سړي تر ډېره هغه لور ته کتل، چيري چي ياسين پټ و، ويري يو ځل بيا هغه پخپل واک کښي واخيست چي دا سړی ورونه ولي ټړي! آيا دی وژني. په وينو لژند مړی يې په همدې ډبه کښي پرېږدي، او خپله پر هغه بل تمځای تا کيږي! اورګاډي ورو، ورو په درېدو و، هغه سړي تر اول ډېر ډاډمن ښکارېدی. هغه ورو ـ ورو د ده لور ته را روان وو د ياسين سا بنده بنده سوه، پر تندي يې سړه خوله راماته سوه او ناړه يې په ستوني کښي وچه سوه، هغه وېرېدی چي هسي نه ټوخي يا ترچي ورسي که نه نو تر همدې ځوکی لاندي به يې ...

د يو تمځای په رارسېدو اورګاډی تم سو. سړی بې غمه راغی په هغه وره کښي ودرېد چي د فليټ فارم لور ته و. د هغه يو لاس په جېب کښي و. په جيب کښي به يې کوم چاقو ماقو وي. ياسين فکر وکړ چي منډه کړي او د هغه بل لوري له وره ځخه ټوپ کړي خو هسي نه چي له هغه خايه تر راوتو وړاندي يې هغه سړی خبټه ورځيري کړي. بلکي خبټه ولي. مری به يې ور پرې کړي چي ناره يې هم ونوخي. ياسين غلی هغه ته وکتل. هغه سړي د دباندي ننداره کوله. په تمځای کښي چوپه چوپايي وه. ان د چا د قدمونو بږغ لا هم نه و. د ياسين زړه و چي يو ځوک راسي. خو څه معلومه وه چي ځوک راسي! هندو که مسلمان! يو بل هندو هم سم دی. کېدای سي هغه هم د "بهاو" غوندي زړه سواند وي. هغه ځنګه خپله د سپنسيو مذهبي غاړګي را په غاړه کړه او د چايو له پښې ځخه يې خپل کور ته بوتلم او ځلور ورځي يې پخپل کور کښي وساتلم، هغه به ويل "ياسينه زه مرهټه يم خو هره ورځ غوښه نه خورم، که ته غواړې نو درته راوړم يې، نه پوهېږم چي ځنګه به وي چي په حلال او مردار يې زما سر نه خلاصيږي، دباندي د ترکاريو داسي حال دی چي ټولو له يوه سره بوی کړی دی خو د خرځولو ځوک يې نسته، چي ور ووزي ځومره چي دي زړه وي هغومره وړلای سي ...

او راډيو پرله پسې همدا ويل چي اوضاع ورو ـ ورو مخ پر ښه کېدو ده، په ځينوسيمو کښي يې د ملي بسونو تګ راتګ هم پيل کړی و، دا ځلور ورځي د هغه په کور ډېر چورت خراب و. کور به هم ټول د ده پسي اندېښمن وي، له هغه سره وېره وه چي هسي نه فاطمه د ده په لټه ښکرۍ ته پسي ورغلې وي، په کوم کور کښي چي هغه پټ و له هغه ځخه د اورګاډي پټلۍ معلومېده، موټرونه هم معلومېدل . خو بهاو هغه نه پرېښود

اورګاډي يو دم روان سو او ياسين له هغه خايه د ډبې په منځ کښي ولوېد، هغه بل کس چي لويه اوسپنه يې په لاس کښي وه ډېر ډاډمن ولاړ و، د هغه راسته لاس تر اوسه لا په جيب کښي و، اور ګاډی تر يو خايه ورو ـ ورو روان و، اورګاډي ولي نه چټکيږي! اشاره هم نه سي کېدای ځکه ترافيک کله و! تر اوسه يو اورګاډي هم له بل لوري نه راغی، اورګاډي لا ترډېره ورو، ورو روان و، درېدو ته چي کوم ځای ته راورسېد هغه د "بهسندر" پل و، لاندي د سمندر هغه خليج و چي اکثره به يې د مړو د را ايستلو خبر په ورځپاڼو کښي چاپېدی.

نور په (۲) مخ کښي

د م ناصر "نصرت" ژباړه

# شرمناکې ښځه

رښتیا وایم او له تاسي یې نه پټوم، زه یو خلق تنګی او دومره نفسي سړی یم چې پر پزه مچ نه پرېږدم. خو د همدې علتو سره سره مې تصمیم ونیوئ چې یوه ډېره آرامه. کم ګویه او شرمناکه ښځه وغواړم

هو ! هو !

ښځه مې دومره شرمناکه وه. کله چې ما د واده وړاندیز ورته وکړ، هغې له ډېره شرمه حتی دا ویلای نه سوای چې زما د ژوند ملګرې سي خو ما چې به هر وخت له هغې سره په دې باره کښي خبري کولې یعني د ګډ ژوند د پلان په باره کښي مو صحبت سره کاوه، هغې به په چوپتیا کښي زما و خواته کتلي او فقط د موافقې په توګه به یې خپل سر ښوراوه که به زه خوشحاله او له هغې سره به مې شوخي کوله خو هغې به په ډېري حیا باندې یو نری تبسم کاوه. او څه به یې نه ویل که به زه عصباني او قهر به راغی بیا به هم هغې عکس العمل نه څرګنداوه آرامه او بې رغ و روغه به په یوه ګوښه کښي پر پښو ولاړه او خبري به یې نه کولې همداسي زما ښځه د نورو ګوښه نشینو په شان ګوښه نشینه او کم حرفه وه.

زموږ د واده د دوو کلونو تېرېدو په موده کښي یې حتی زما د محل د همسایګانو د بلاک د یوې نفرې سره هم اړیکي پیدا نه کړې. ما د هغې په دغه رویه کښي هیڅکله مداخله ونه کړه او خوښ وم چې ښځه مې لکه څنګه چې یې طبیعت دئ همداسي ګوښه پاته وي

رښتیا وایم زما د همسایه ګانو ګڼه ګوڼه، رغ و روغ، ټګ او راټګ خوښ نه وو، او همداسي چې به له کوره تله او راتله، حتی همسایګانو به دانه حسوله چې زموږ په کور کښي یو ژوندی څوک سته!

څو میاشتي تېري سوې. آخر د ښځي په وجود کښي مې د اولاد لرلو زیاتي نښي او علامې څرګندې سوې، پوه سوم چې ډېر ژر به د اولاد خاوند سم یوه ورځ مې ښځي ته و ویل:

ـ ګراني ! څرنګه چې انسان یو اجتماعي مخلوق دئ او باید په اجتماع کښي ژوند وکړي یعني څوک نه سوای کولای چې یوازې او د نورو انسانانو څخه بېل واوسي. اوس چې ته امیدواره او د نورو کسانو مرستي ته احتیاج لري، نو کله چې د اولاد مور سوې بیا بیا به هم د همسایګانو مرستي او مشورو ته محتاجه یې

زما ښځي هم د یو بې آزاره مرغه په شان زما خبره منلې او ژمنه یې وکړه چې په دې ورځو کښي به د ټولو همسایګانو له ښځو سره و وینم

هو !

هغه وو چې ښځمنو همسایګانو مې له ښځي سره وپېژندل هغوي د خبرو اترو په ترځ کښي پوه سولې چې ښځه مې امیدواره، او چې نه مور، نه خور، نه خواښې او نه په بغل کښي یوه تجربه لرونکې او هوښیاره ښځه لري او هم زما په باره کښي پوه سول چې زه یو کاروباري سړی او د اولاد داری په کار کښي بې تجربې یم. نو یوه ورځ یوې همسایې زموږ د دروازې زنګ وواهه، که ګورم زموږ د دریم منزل ښځه چې د خرمایي وېښتانو لرونکې وه، ولاړه ده دا د یو قانون پوه ښځه وه چې زما ښځه یې ولیده د ډېر محبت څخه یې په غېږ کښي نیولې او آخر یې ورته و ویل

ـ ډېره ډېره مبارکي درته وایم خیر دي وي ستاسي د کور فضا به هم د یو ښکلي او ګلالي وړوکي په راتګ سره په زړه پوري سي ماته چې هر امر او ضرورت وي دریغ به یې نه کړم په زیاته بیا د داسي مهرباني محجوبي ښځي لکه تاسي و هر ډول کومک او مرستي ته تیاره یم. او هم یې تر یو لړ محبت څرګندولو وروسته زیاته کړه چې زما ښځه باید ښه او قوي خوراک وکړي

څرنګه چې په هغو ورځو کښي په بازار کښي (کوچې) یو څه په تکلیف پیدا کېدل او په مغازو کښي هر څوک باید ډېر وخت په صف کښي ورته ولاړ وای، څو یې کوچې لاس

ته راوړي وای نو هغې ښځي خواهش وکړ ـ ګراني ! ځرنګه چي ته امیدواره او هره ورځ په کوچیو پسي ځـې نـو ماته یې هم راوړه. ځکه چي امیدواري ښځي د مغازو په نوبت کښي ډېري نه دروي، هر شی چـي یـې پـه کـار وي ژر یـې ورکوي طبیعي ده چي زما د شرمناکي ښځـي هـم د قـانون پوهي د ښځي خواهش قبول کړ

بل وخت بیا زموږ د همسایګانو بله ښځـه زمـا د ښځـي د لیدلو لپاره راغله، دا د یو جنـرال کونـډه ښځـه وه. هغـه تـر دروازې راوتلې نه وه چي خپل زیات لطف او مهرباني یې پـه ډېرو ښکلو او شیرینو الفاظو زما تر ښځي جار کړه ویې ویل

ـ اې ګراني خانمي ! امیدواري ځونـه ډېـره ښکلـې او ښایسته کړې یې. د امیدوارو ښځو باید ډېر احترام وسي. آینده میندي ځونده ښه دي یعني اوسني امیدواري ښځي تکلیفونه، نه ویني، په ترامو او برقي بسونو کښي د دوی لپاره مخصـوص ځایونه معلوم سوي دي. خو زموږ په وختو کښي حتی برقـي بسونه او نور د استراحت شیان نه وه، یعني زمـوږ پـه وخـت کښي ترامونه او برقي بسونه اختراع سوي لا هم نه وه.

اخو زه ښربدم که خبري وکـړم نـه چـي زمـا خبـري د هغې د سن په لحاظ حساسیت پیدا کړي ) خو زړې ښځي بیـا هم خپلو خبرو ته داسي ادامه ورکړه.

ـ هې ! هې ! موږ په خپل وخت کښـي کـولای سـوای چي بې نوبته که څـه هـم امیـدواري وو غـوښې او نـور څـه رانسو. چي دا یـې و ویـل پـه پـای کښـي د جنـرال ښځـي خواهش وکړ

ـ ګراني ! موږ همسـایګاني یـو پـه درد خـورو. زه اوس ستا سره و هر ډول مرستي او کومک ته تیاره یم

هو ! رښتیا کله چي سهار د خپل کور د سودا لپاره ځـې کولای سې چي ماته هم د پسه یو کیلو غوښه را رانیسـې. اخ ! چي په نوبت کښي درېدل مي زړه را وبلي کوي. خو ته چـي امید واره یې تاته بې نوبته غوښه درکولای سي. ستا د سـر پـه صدقه د خپلي خاله جانې سره دا کومک وکړه !

زما ښځي بیا هم نه سوای کولای چـي د (یـه !) جـواب ورکړي ځکه اصلاً زما د ښځي دا طبیعت نه وُ چي ځانه د (یه) جواب ورکړي

د کونډې ښځي تر تګ نیم ساعت وروسته زموږ د دوهم منزل ښځه راغله. دا ښځه هم ډېره مهربانه وه. زما ښځه یې پر مخ ښکل کړه، او ډېري داسي مشـورې یـې ورکـړې. مثلاً: ګرزه، ښه خوب کوه، ښه خواړه خوره او خپلـي روغتیـا تـه توجه کوه

په آخر کښي هغې ښځي دا زیری ورکړ چـي د ښـار پـه کومه فروشګاه کښي د بـالاپوښ لپـاره ډېـر ښـه ښـه ټـوکران راغلي دي چي له دې موضوع څخه د ښار ټـول خلـک خبـر سوي او پر مغازه باندي ډېر بد حال دی. کله چي دا ښځه پوه سوه چي زما ښځه نه غواړي د ځان لپاره دا ټوکران رانیسي نو خواهش یې وکړ.

ـ ګراني ! ته چي امیدواره یې نو دا ټوکران تاته بې نوبته درکوي، چي د ځان لپاره یې نـه اخلـې نـو کاشـکي دومـره مهرباني وکړې د دغو ټوکرانو څو متره ماته را رانیسې

زما ښځي بیا هم نه سوای کولای چي دا خواهش یې ور رد کړي. ښځه مي اصلاً ډېـره آرامـه او شـرمناکه وه د نـورو ښځو په خبر یې موافقه ورسره وکـړه. سمدسـتي یـې پیسـې ورکړې او خپل فرمایش یې ورته و وایه

د همسایګانو ښځي به هر کله یو په بل پسي زما د ښځي د لیدلو او پوښتني لپاره راتلې خو د خبرو په ترځ کښي به چـا د فټبال د مسابقې د ټکټ فرمایش ورکاوه. او چا او چا به د تیاتر د ټکټ او یا د ناپابه ټوکره د راوړلو خواهش کاوه. ځکه چـي زما ښځه امیدواره (حامله) وه او دې ته به په مغـازو کښـي هـر څه بې نوبته رسېدل. ډېره جالبه خو لا دا وه چي زمـا ښځـي ته به یې ویل

فلاني مشهور ډاکتر ویلي دي چي امیدواري ښځي بایـد ډېري وګرځي. په دې خبره زما وضع ډېره خرابه سـوه ځکـه چي سهار وختي به مي ښځه له کوره وتله، بیا بـه غـرمې تـه نژدې په داسي حال کښي چي د ډول ډول شـیانو پلنـډې بـه ورځخه وې کور ته راتله. د غرمې ډوډۍ چي به یـې خوړلـه بیا به ووتله او تر ماښامه پوري به د فروشګاوو پـه غرفـو کښـي سرګردانه وه. کله چي به راغله او همسایه ګـانو بـه د کلکینـو څخه ولیده خپل فرمایشي شیان به یې وړل او سبا ته به یې نور فرمایش ورکاوه.

یوه ورځ مي حوصله تنګه سوې او چي پر خپلـي ښځـي مي مخ راوګرزاوه ورته ومي ویل

ـ ته خو د محل پلنـډې یـې ! ټولـه ورځ یـې د شـیانو د رانیولو او راوړلو لپاره تللې یې... پرې یې ږده، هر زهر مار چي یې په کار وي په خپله یې رانیسي او ویې خوري

ښځي مي په آرامي او کراري سره راته و ویل

ـ د دوی غوښتني ولې ورجواب کړم؟ تا په خپلـه وویـل چي سړی باید په ټولنه کښي ژونـد وکـړي او اړیکـي ورسـره ولري

مېړه یې ورته و ویل:

ما داسي نه دي ویلي چي یو څوک دي بل څوک د خان په ګټه استعمال او استفاده دي ورڅخه وکړي ... که بلـه ورځ دغو فرمایش کوونکو ښځو زموږ په کور کښي پل (قدم) کښېښود له کلکین څخه به یې لاندي ور وغورځوم چي بیا به نور سودا مودا نه وي او هم ته باید هغوی ته مخ ور نه کړې.

په دې وخت کښي زړه کونډه هم زموږ کره راغله او تر پوښتني کروبېرني وروسته یې و ویل:

ـ خور ځې جاني ! ویل کیږي چي بازار ته ډېر ښایسته نیلوني کڅوړي را رسېدلي او پر هغه باندي ډېره ګڼه ګوڼه وي. که وکولای سې د خپلي خاله جاني لپاره شپږ یا څه زیاتي کڅوړي را رانیسې ښه به وي.

زما ښځي چي په ډېر حجب او حیا سره دا خواهش ورجواب کړ، هغي ښځي چي د دې خبري انتظار نه درلـود سمدستي یې مخ سور او شین سو و یې ویل:

ـ خدایه ! دا اوسنی ځوانانې د پخوانیو زړو ښځو هیڅ احترام نه لري. هغه زما له ښځي څخه خوابدې سوه، او چي د تګ په وخت کښي یې دروازه په زوره زوره و وهله په زینو کښي پورته سوه. ځرنګه چي خبري یې اروېدلي کېدلې زما ښځي ته یې ښکنځلان کول او د خودخواه خطاب یې ورته کاوه. په دې وخت کښي ما لـه ډېـري خوشحالي خندل او ومي ویل: ښه سو چي خوابدې سول که نه فرمایشو یې تـر قیامته تمام نه درلود.

ښځي مي بیا په تاثر و ویل:

ـ ښه کار مي ونه کړ ! آخر موږ په ټولنه کښي ژوند کـوو چي دا یې و ویل. ښځه مي بیا په هغې زړې ښځـې پسـې ولاړه، چي عذر ور څخه وغواړي او د دې لپاره چي ورڅخه آزرده نه سي او هغې ته بیا خودخواه حطاب ونه کړي، خو بیا یې هم د همسایګانو سره کومک کولو ته ادامه ورکړه.

آخر همسایه ګانو هم مهرباني کړې او ټولو پیشبیني کوله چي زموږ سترګي به ستاسو کره د یو ګلالـي اولاد پـه لیـدلو سره روښانه سي او هم یې وعده کوله چي موږ همسایګان بـه ستا د حامله ښځي سره د هیڅ ډول مرستي څخه ځانونـه ونـه سپموو.

یوه ورځ زه په خپل دفتر کښي په کار بوخت وم، چي د تلیفون زنګ راغلی. کله چـي مـي ګوشـکی پورتـه کـره لـه زېږنتون څخه سوی وُ او ویل یې:

ـ آیا ته خبر یې چي ښځي دي ځرنګه ولادت کړی دی؟ هو ! د مغازې مخې او د خلکو د ګڼه ګوڼي په منځ کښي چي د همسایګانو د شیانو د رانیولو په هڅه کـي وه، ولادت کـړی او له هغه ځایه څخه زېږنتون تـه بېـولې سـوې ده. اوس زه د خپل یو ښکلي کوچني سره ژوند کوم. داسي کوچنی لکـه د زړو غټی.

تر دې وروسته خو زموږ همسایګان بیا هیڅکله زموږ کره نه راغله چي د یو شي فرمایش وکړي، څکه چي زما ښځه بیـا نوره امیدواره نه وه، چي بې نوبته د شیانو سودا ورتـه راوړي فقط کله کله چي زه به د کور مخـې تـه ولاړ، او یـا پـه زینـو کښي راکښته کېدلم د جنرال د کونډې او یا د قانون پوه او د همسایه ګانو د بلي ښځي سره مخـامخ کېـدلم، دا بـه یـې پـه زغرده راته ویل چي زه باید د همسایه ګانو د آرامـی لپـاره لـږ څه متوجه واوسم، څکه دوی به ویـل ستاسـي نـوی کـوچنی ډېر نا آرامه او ژړانده دی چي ټوله شـپه پـه زوره، زوره ژاړي او موږ یې ډېر نا آرامه او بې خوبه کړي یو.

## مینه او محبت :

* ځورول د میني لومړنی غذ اده.
* ژوند خوب دی او مینه یې د خوب لیدل دي.
* کله چي دوه مین سره یو ځای سي او بیا سره جلا کیږي دغه دواړي شیبې د ډیرو قیمتي شیبو څخه شمېرل کیږي.
* مینه هغه وخت غښتلې کیږي چي د خندونو او ځورولو سره مخامخ سي.
* مینه چي د سترګو په اوښکو سره ومینځلای سي همېشه به ښکلې او سپېځلې وي.
* اندېښني، د خوبونو لیدل، اسویلي، اوښکي او هیلـي د مینـي څخـه نـه بېلېـدونکي اندیوالان دي.
* څـوک چـي غـواړي اوښکـي و ریبـي، د مینتوب تخم دي وکري.
* مینه د پیري پـه شان ده چي ټول د هغه پـه هکله خبري کوي خو هیچا په خپلو سترګو، نه ده لیدلې.
* مینه او محبت د شتو تکیه، د هیلو سرچینه او د ژوند بنسټ دی.
* مینه او مـین لـه خپلـو خبرو څخه څکـه نـه ستړي کیږي چـي دوی تـولي خبري د خپلو ځانونو په هکله کوي.

# ځوانان او ټولنه

جاوید احمد "وفا"

ګرانو ځوانانو ! دا ټولو ته د لمر په څېر روښانه او معلومه ده چې د هري ټولني د ملا تیر ځوانان تشکیلوي، په کومه ټولنه کښې چې ځوانان ویښ، فعاله او د ټولني د ناخوالو څخه خبر او درک یې کولای سي. نو پخپله ټولنه کښې د خپلو ځوانو او غښتلو متو په زور ټولي ستونزي په پوره مېړانه له منځه وړي او د خپلو تلپاته هڅو او نه ستړي کېدونکي کار په برکت خپلي ټولني ته ترقي او پرمختګ وربخښي او د خپلي ټولني ټولو غړو ته پخپل ځوان طاقت د هوسا او سوکاله ژوند زمینه برابروي

خو ! برعکس په هغه ټولنه کښې چې ځوانان یې په درانه خوب بیده وي د غفلت لاره یې غوره کړې وي، په ټولنه کښې د موجوده ناخوالو څخه بې خبره د خپل ګران هیواد او خلکو خدمت یې له یامه غورځولی او خپل د ځوانۍ نه لاس ته راتلونکی قیمتي وخت یې بې ځایه او عبث تېر کړی وي. نو د هغې ټولني د ملا تیر به د تل لپاره کوږ، د فقر او غریبۍ سره لاس او ګرېوان وي. د نورو لاس نیوني ته به ضرورت لري او تل به ئې نورو ته د مرستې د غوښتني لاس اوږد کړی وي. ځکه چې ځوانان یې بیده، بې احساسه او بې درکه دي

هوکې ! ګرانو او زړه ته رانژدې افغاني ځوانانو که غواړئ چې خپله افغاني پاکه او سپېڅلې ټولنه د بد بختیو، ستونزو او مشکلاتو څخه خلاصه کړئ، د ترقۍ، پرمختګ، سوکالۍ او خوشحالۍ لوري ته یې ستنه کړئ، او په ټولنه کښې خپل ځای و پېژنئ، خپل مسئولیت درک کړئ او د ټولني د یوه با احساسه ځوان په توګه خپل پیاوړي او غښتلي موټي د ټولني وګړو ته د هوسا او ښه ژوندانه د را منځته کېدو په خاطر په کار واچوئ، او هر ډول سیمیز، قومي، نژادي او مذهبي توپیرونه شاته و غورځوئ ټوله ځوانان لاسونه سره ورکړئ د ملي یووالي او ملي وحدت په روحیه د خپل نوي افغانستان چې له د ۲ کلونو ناخوالو څخه تازه خلاص سوی دئ، لاس په کار او په دې حساس وخت کښې یې د بیا جوړوني لپاره نه ستړي کېدونکي هڅې وکړئ



خو ! ګرانو ځوانانو ! له یاده مه باسئ چې ستاسو دغه هڅې او د خپل ګران هیواد افغانستان لپاره کار هغه وخت مثبت او ښه پرمخ ځي چې تاسو د پوهي او علم د زرینې رڼا څخه برخمن سئ. دا چې اوس د هیواد په ګوټ ګوټ کښې د هیواد د ماشومانو او ځوانانو لپاره د پوهي او علم شمعې بلي او پر خپله زرینه رڼا ئې په میلونونه ماشومان، پېغلي او زلمیان راټول کړي دي نو د رڼا څخه ئې په بشپړه توګه استفاده وکړئ، او د همدې پوهي، علم او زده کړي په رڼا سره د ورانۍ، ظلم، جنګونو او ټولو ناخوالو څخه رامنځته سوې تیاره ورکه او له منځه یوسئ

خپل هیواد د ترقۍ او پرمختګ پر لوري روان کړئ نړۍ او نړیوالو ته دا روښانه او ثابته کړئ چې افغانان نه یوازي د جګړې د ډګر اتلان بلکې د سولي، آبادۍ او سوکالۍ د ډګرونو اتلان او قهرمانان هم دي

کور او پخلنځی

# د خوړو ساتل

جمیله همت



ځموږ ځینې هغه میرمنې چې د کور دباندې په دفترونو کښې کار کوي، د جمعې په ورځ چې رخصت وي غوښې پر یوه ځای رانیسي، څو ډوله سابه او میوې په یوه ورځ راوړي او د غوښو او سبو څخه څو ډوله خواړه پخوي. دغسې خواړه باید د یخچال د یخي په ځای کښې وساتل سي کله چې ناسې غواړئ چې خواړه په یخچال کښې کښېږدئ او د څو ورځو لپاره یې پکښې وساتئ، نو باید هغه په پلاستیکي دبلیانو کښې واچوئ او سرونه یې ښه ور وتړئ پدې چې کله د یخچال ور پرانیزئ هغه نه اکسیجن ور ننوزي او د خوړو پر خوند، رنګ او بوی باندې بده اغیزه ښندي

د دې لپاره چې خواړه، میوه او تازه سابه لـه خرابـۍ او مکـروب اخیستلو څخـه وساتل سـي، نـو باید د پلاستیکي دبلیواو کڅوړو څخه کار واخلئ او شیان ښک پکښې ونیچې

میوې باید په سرپوښ لرونکو دبلیو کښې یخـي کـړئ او ځینې تازه سابه، لکه زرد کي، مولـۍ، شـنه پیـاز، مټر، شـنه لوبیا، نخود او داسې نور لومړی ښه پاک کړئ او بیا یې پـه ښډو پلاستیکي کڅوړو کښې واچوئ، او په یخچال کښې یـې کښېږدئ کباب، د کبانو پخې غـوښې، پـه کریمـو او داسـې نورو غوړو سوي خوړې (مټایي) باید پـه المـونیمي کاغـذ (زربرزخ) کښې ونښچل سي کـه زربـرزخ نـه وي پـه کڅوړـو کښې یې واچوئ او په یخچال کښې یې کښېږدئ بل چې هر کله غورمه، کوفته او هر غـوښې لرونکـې سالن لـه یخچـال څخه را واخلئ، چې تود مو کئ، هغـه بـه ټولـه پـه مصـرف رسوئ او د دوهم ځل لپاره یې په یخچال کښـې مـه ایـږدئ، ځکه چې پاخه سوي خواړه باید یوځل یخي سي نـو ښـه بـه داو ي چې هغه اندازه خواړه چې تودوئ یې په چکش یـا اره جلا او تاوده کړئ او پاته یخي سوي خواړه بیرتـه پـه یخچـال کښې کښېږدئ کوښښ وکړئ چې خـواړه څـو جـلا جـلا برخې کړئ او د یخي په ځای کښـې یـې کښېږدئ کـومې میوې او سابه چې په یخچال کښې سـاتئ بایـد ښـه تـازه وي، چینجي خوړلي او پیزې نه وي پدې چې تازه شیان تـر نسـبتا ډېره وخته سـاتل کیـږي او خپـل ویټامینونـه ژر لـه لاسـه نـه ور کوي د یخچال دروازه بېله ضرورته مه خلاصوئ، که قلف ولري قلفوئ یې. څو د کوچنیانو د لوبـوني ونـه ګـرزي پـه یخچال کښې تاوده شیان تر څو ساړه سوي نه وي مه ایـږدئ دغه راز یخچال ډېر مه ډکوئ، بلکې یو څه خالي ځای پکښې پرېږدئ، څو د هوا جریان پکښې وي او شیان ښه یخـې سـي کله چې شیان په کڅوړو او دبلیو کښې اچوئ پام مو وي چې تر یوه یوه کیلو زیات نه وي او که وبلي (مایع) شیان په دبلیـو کښې اچوئ باید دبلې څوکه په څوکه ډک نه کړئ، بلکې یو څه یې خالي پرېږدئ، پدې چې کله مایع شیان یخي کیږي د دبلیو سرونه ماتیږي

**د غوښو ساتل**

د چرګ، کبانو او نورو غوښې باید د یخچال د یخي پـه ځای کښېښوول سي کبان په یوه نازک ټوکره کښې ونښچـې او کښې یې ږدئ غوښې چې له یخچال څخه راوباسـئ ډېـر وخت یې مه پرېږدئ، بلکې په دغه یخوالي کښې یې پخـوئ یخې غوښې باید په یوه سر تړلي لوښي کښې کښېښوول سـي د چرګ غوښې ښه پرېولئ بیا یې وچې کړئ او د پخېـدو تـر وخته یې ښه یخې وساتئ هغه غوښې چې پخـې نـه وي خـو وچې وي او مالګه په وهل سوې وي په تیاره او هـوا لرونکـې ځای کښې تر ډېره وخته ساتل کېدای سي

که غواړئ چې غوښې وچـې کـړئ، نـو یـې کوچنـۍ کوچنۍ ټوټې کړئ، مالګه پر واچوئ پاته په (۵۴) مخ کې

د عبدالولي "شجاعت" ژباړه

# د ويني ګروپونه او انساني شخصيت

دا يوازې د يوې هېرېدلي د خولې خبره نه ده چې وايي (خون ګرمي زما نه ونه کښي دد) خيني نور په وينه کښي زيار ـ حرنت ـ سرنتوب او به ډېرو کښي هم بد عملونه موجود بولي. په دې ورووستيو وختونو کښي په ميليونونو تنه جاپانيان په دې معتقد سوي دي چې دا نظريات رښتيا دي.
جاپانيان او دغه راز نور اروپايوهان په دې عقيده دي چې د ويني ګروپ کېداى سي د انساني شخصيت ټاکونکي وي. هغه نارينه چې د A ګروپ لرونکو ښځو سره د واده په لټه کښي دي تل د مشکلاتو سره مخامخ وي. څکه د A ګروپ لرونکي ښځي د آزادۍ او آزاد ژوند سره مينه لري.

هغه ډله خلک چې د ويني B ګروپ لري ډېر کارکوونکي او زيارکښ دي. د A ګروپ لرونکي اشخاص له ډېري انرژۍ ډک او پر خپلو همکارانو باندي د کارکولو په برخه کښي ډېر فشار اچوي. دغه نتيجې د جاپاني څېړونکو له خوا څرګندي سوي او د هغوې له قوله په دې برخو کښي ډېر کم استثنآت سته.

په انسانانو کښي د ويني څلور ګروپونه سته:
د شمېر له نظره د A ګروپ ښتنان لومړۍ مقام او د صفر دا په دوهم مقام کښي ځاى لري. د ويني ګروپونه ټول عمر نه بدلېږي او جينيتيکي بنسټ لري.

د نوو څېړونو په نتيجه کښي ثابته سوې ده چې دغه فکتور تر يوې ټاکلي اندازې پوري د انسان په سرنوشت او روغتيا باندي اغيزه لري.

د پروفيسور (ګيرهارد) له نظره د A ګروپ ښتنان ډېر زيات په عصري ناروغيو لکه د زړه حمله، روماتيزم، د پښتورګي تيګه، د شکري ناروغي، د سينو سرطان، د ګېډې سرطان او داسي نورو باندي اخته کېږي. د صفر ګروپ لرونکي اشخاص اکثراً د معدې د وريدونو او د پوستکي د يو ډول سرطان په ناروغيو له امله خورېږي. د ګروپ ښتنتان په نسبي ډول د ښې روغتيا خاوندان او معمولاً اوږد ژوند لري او تر ۷۵ کلنی پوري د A د خاوندانو په تناسب په سلو کښي شپېته زيات ژوند کوي.

د پروفيسور (جورګينسن) له نظره هغه کسان چې د ويني د A ګروپ ښتنان دي د B او A په منځ کښي قرار لري. او هغه اشخاص چې د ويني ګروپ يې AB دي تر اوسه د زياتو څېړونو لاندي دي او نتيجې يې لا نه دي څرګندي سوي. هيڅ تر اوسه دا نه ده واضح کړې چې ولي د B د ګروپ خاوندان نسبتا د ښه صحت ښتنان دي او اوږد ژوند کوي. د آلمان د ولادي نسايي او ساه پوهني ډاکټر (ونډرلين) ټينګار کوي چې د هغوې رواني مقاومت زيات او په دې ډول له فزيکي نظره هم قوي دي. څېړنو ښودلې ده چې په ځينو کښي کښي د ويني ورکوونکي د معايناتو په نتيجه کښي دا ثابته سوې ده چې د A ګروپ لرونکي اشخاص په ډېرو کمو مواردو په رواني ستونزو اخته کېږي. چې بيا وروسته ور څخه نوري ناروغۍ منځته راځي.

وروسيتو پلټنو جاپانيان معتقد کړي دي چې د ويني د ګروپ او روح تر منځ متقابل اړيکي موجود دي. د پارس يو اروپايوه (جين پايتيس) وايي:

"د ويني ګروپونه د انسان د اساسي خاصيتونو ټاکونکي دي. هغه خلک چې د ويني ورته ګروپونه لري د نسبتا يو ډول کړو وړو ښتنان دي."

پروفيسور (ديلاکور) څرګندوي:

"د A ګروپ انسان زهير او باوجدانه دي، کار د هغه لپاره لوړ ارزښت لري، ډېر رښتيني او هغه څه چې فکر کوي په خوله کښي يې هم وايي. که کوم چاته د دوستۍ او آشنايۍ لاس ورکړي په هر حالت کښي وفادار پاته کېږي.

د B ګروپ اشخاص معمولاً حساس، متواضع او آرام طبيعت لري. په عشقي مسئلو کښي ډېر احساساتي او ناروغه ايز انداز کينه کښ (حسود) وي." په سويس کښي د يوې پوخي قطعې سرتيري د هغوې د ويني د ګروپونو ـ پاته په (۸۰) مخ کي

انجینر عبداللطیف "آشنا"

## د سویډن د مالمو په ښار کښې

# د افغانانو کلتوري مرکز

د ۱۳۸۳ لمریز کال د نوروز لومړۍ ورځ وه چې د سویډن د مالمو په ښار کښې د افغانانو و کلتوري مرکز ته د افغانانو سره یو ځای د دغه ورځې د نمانځلو



د ښي خوا څخه : محمد نادر بريالی، حضرت ګل خان او آشنا

لپاره زه هم ورغلم. څرنګه چې دا زما لپاره په ژوند کښې د اروپا لومړی سفر و، نو ماته هم ځکه ډېر دلچسپ و او څه وخت چې مې افغانان وروڼه او خویندې د خوښۍ څخه په یو ډک محفل کښې لیدل خوشحالي مې څو چنده سوه

و دې کلتوري مرکز ته د نوروز د ورځې په خاطر د سویډن د نورو لیري ښارونو څخه هم زیات افغانان راغلي وه زه هم د افغانستان څخه د یو مېلمه په صفت د دوی و دغه محفل ته ورغلم اوس به خپل د سترګو لیدلی حال درته و وایم

په محفل کښې لکه څرنګه چې د نوم څخه یې معلومه ده، چې د نوروز مراسم وه، هر چا ښکلې جامې او ښې دریشۍ اغوستي وې او هر چا چې کورونه یې په نږدې شاوخوا کښې وه په افغاني او پښتني دود باندې د خپل خان یعني یوه فامیل سره (۷) رقمه خواړه را اخیستي وه چې دا دود او دستور په افغانستان کښې هم په مختلفو ډولو تر سره کیږي. لکه چې د افغانستان شمالي ولایتونه د هفت میوې او کشمش او یا اب په نوم اووه رقمه میوې سره ګډوي او په هر کور کښې پرانه وي. او و دوستانو ته یې ورکوي د خوړک لپاره، خو د جنوب ولایتونو رواج دا نه وي چې یا نوي کالي واغوندي او یا نور مراسم تر سره کړي. فقط په دغه ورځ و مېلو ته ځي او ماښام (۷) رقمه خواړه پخوي. نو زموږ دغو وروڼو هم د خپل وطن د نوروز په خاطر مختلف رقمونه خواړه را اخیستي وه او و دغه کلتوري مرکز ته یې ور وړل او په مخصوص ځای کښې د خاصو موظفو خلکو له خوا دا



د ښي خوا څخه : محمد قاسم جلالي، ډګروال فاروق، آشنا، سلیم بابی، محمد عمر

سار سوي خواړه او یا ډول ډول کیک او کلچې احیسل کېده. څه وخت چـي د ډوډۍ د خوړلو وخت سو، پخپله د دغه کلتوري مرکز له خوا هم پوره ترتیبات د ډوډۍ لپاره نیول سوي وه. ډوډۍ و مېزو ته راغله پـه ډېـر شـوق او مـزه خـوړل کېده

که څه هم دا مرکز لیري حای و خو لکه څرنګه چـي افغانـان و خانتـه خپـل دود او خاص کلتور او فرهنګ لري پـه دې مرکـز کښـي نارینـه و یـوې خواتـه او ښځي و بلې خواته ناستي وې که څه هم ټول د یـوه کـور او یـوه فامیـل حیثیـت درلودۍ او ښځي په لڅ مخ وې خو د پښتنو په دود او رواج سره خوینـدي جـلا او نارینه جلا ناست وو. هر چا د هر چا سره چي زړه نـې و آزاد مجلـس کـاوه. لکـه څرنګه چي زه هم د دغه مجلس چي د نارینه و سره و یو غړی وم. د دغـه مرکـز د رئیس ښاغلي محمد نادر "بریالي" او د دغه کمېټې د نورو غړو لخوا چي اکثره یـې کنـدهاریان وه ډېـر استقبال سوم. چي زه به هیڅ وخت د دوی دغه مېلمه پالنه هېره نه کړم. دوی زما څخه د وطن په هکلـه ډیـري ډېري پوښتني کولې. او ما هم پـه خپـل وار سره و هغوي ته زما په نظر د دوی د پوښتنو مطـابق ځوابونـه ورکـول. یـو وار مـي پوښتنـه ختـي وکـړه



د ښي خوا څخه دګروال فاروق، انجینر آشنا، احمد مقصودی او محمد امین

چي ستاسو سوال لنډ او مختصر وي. لیکن زه جـواب اوږد درکـړم. خـدای دي وکړي چي پر تاسو تکلیف نه سي، بالاخره مـي د دوی څخـه واورېـدل چـي هـر څومره چي جواب اوږد او په تفصیل سره وي موږ ته ډېر دلچسپ وي.

دا شپه مې د سهار تر ۴:۳۰ بجو پوري د دوستانو په مجلس او خبرو تېره کړه، سره د هغه چي د نوروز د مراسمو پروګرام موږ تقریبا پر یوه بجه پرېښووی خو دوی یو بل ډېر ښه خای د مسجد په اړخ کښي درلودۍ چي شا وخوا د لوی احمدشاه بابـا، حـاجي میـرویس خان نیکه، شېرشاه سوري، سلطان محمود غزنوي، وزیر محمـداکبر خـان او نـورو افغـاني اتلانو عکسونه پکښي خوړند وه خو په کلتوري مرکز کښي مې هیڅ نه کـوم کتـابتون او نـه کوم عکس ولید. د کلتوري مرکز او د افغانانو د اتحادیې مشر "بریالی" ډېر معقول د ښه فکر څښتن او ډېر با حوصله سړی و ډېر ښه او د خوند څخه ډک مجلس نـې و. د ده پـه څنـک کښي حکمت الله حکمت، محمد عمر "توخی" چي د دغـه کلتـوري مرکـز مرسـتیال و او ببرک "بارک" چي هغه هم د مرستیال دنده درلوده د مجلس ډېـر ښـه غـړي وه. ډګـروال غلام فاروق چي ډېر ښه ادیب او شاعر هم و زما په زړه کښـي خـای ونیـوی، محمـد سـلیم "عزیزي"، عبدالله جان، احمد "مقصود"، رنګینه "قریشي"، مرغلره عثمان "فیضـی بـارک"، حاجي محمدقاسم "جلالي" او حمید "تراب" هم د دې اتحادیې غړي وه د دوی تر منځ ډېر صمیمیت موجود و دوی د اتحادیې لپاره حق العضویت ورکاوه په کلتوري مرکز کښي یـې ډېر مجلسونه کول. افغانې دود چي په هر کار کښي مشوره او حرکـه ده د دوی تـر منځ ډېري اړیکې ټینګې کړې وې

دوی څـه مـوده مخکـي یعنـی د ۱۳۸۲ لمریز کال په اخیر کښي د خپلـو افغانې وروڼو سره د همدردۍ پـه خـاطر و کندهار ته څو کسیز هېئت رالېږلی و چي د میرویس روغتون د نرسـنګ د مکتـب او کلینیکو سره یې ښه مرسته کړې وه دوی د خپل وطن او خپلو خلکو په هکله ډیري پـوښتني کـولې. پـه یـده ورخ یـې ډېـر خوابـدي کېـدل. او پـه ښـه ورخ یـې خوشحاله کېدل چـي پـه همـدې منظـور یـې ماتـه بلنه راکړه چـي د دوی د یو مېلمه په صـفت بایـد د سټېج پر سـر و دوی تـه د وطـن پـه هکلـه خبـري وکـړم. مـا هـم پـه خپـل نوبـت دا چـي د نـوروز ورخ وه. او ټول دوسـتان د خوښـي او خوشـحالي لپاره راټول سوي د وطـن د غم او خواشیـي خبري لږ وکـړې او نـورې څـو کلمـې مـي د نـوروز د ورخي د مبارکۍ او افغانانو ته د ازاد ژونـد او خوشحال افغانستان په هکله وکـړې، او په ضمن کښې مې دوی د یو ملي وحـدت او پر خپـل کلتـور او مـذهب بانـدي د لا ثبات او ټینګېدو څو کلمې ذکر کړې، چي د دوی له خوا زما خبرې پـه ډېـر شوق اورېدل کېدې، او زه یـې زیـات تشـویق کـړم چـي دا پخپلـه د دوی د وطـن سـره د مینـي او محبـت ښکارنـدويي کولـه، دوی د وطـن و راتګ ته سترګي په لاره او ډېر د وطن تـږي وه پـه دې خـاطر بـه یـې زیـاتي پـوښتني کـولې، خـدای دي زمـوږ ګران وطن افغانستان هم جـوړ کـي، چي ټـول افغانـان و خپـل ټـاټوبي تـه راسي.

# کندهار په تیرو دوو میاشتو کښي

### ۞ شنبه د وري اوله

د نوي کال د لمړۍ ورځي دودیزه مېله د شنبي په ورځ د کندهار په شمال لوېديځ کښي د خاکرېز ولسوالۍ اړوند د شاه مسعود د دورۍ په انګړ کښي د جنډۍ په پورته کېدو سره د کندهار ښار او ښېلا بیلو سیمو څخه د زرګونو کسانو په ګډون پیل سوه.

دغه دودیزه مېله د نوي کال د لمړۍ ورځي په لمړیو ګړیو کښي د سپېڅلي قران د یوې برخي په لوستلو سره لا روښانه وګرځول سوه.

وروسته کندهار ښاروال ښاغلي عبدالله پوپل د نوي کال د رارسېدو د مبارکۍ څرګندونه وکړه او د دې ورځي اړوند یې لنډې ولې د ارزښته ډکي خبرې وکړې. د ښاغلي پوپل وروسته کندهار والي ښاغلي انجنیر محمدیوسف پښتون ته بلنه ورکړه سوه. هغوي پخپلو خبرو کښي د کندهار او چارچاپېره سیمو د اوسېدونکو په استازیتوب د نوي کال د رارسېدو له امله ولسمشر ښاغلي حامد کرزي او د افغانستان مېړني اولس ته د نوي کال د رارسېدو مبارکي و ویل. هغوي هم د دې ورځي په اړوند د روښانه



څرګندونو په لړ کښي د دې ورځي تاریخي ریښې هم وڅېړلې او تر هغه وروسته د پروان ولایت د پنځمي شمېرې د قول اردو قومندان ښاغلي ډګر جنرال الماس خان ته د وینا کولو بلنه ورکړه سوه.

د هغوي خبرې زیاتره د ملي یووالي او د هغه پر غښتلتیا راڅرخېدې، بیا د ښار او کور جوړولو وزیر ښاغلي ګل آغا شېرزي ته بلنه ورکړه سوه هغوي د مېلي د زرګونو ګډون کوونکو د تودو ولولو په څپو کښي د دریخ تر شا ودرېد او د مبارکۍ د وړاندي کېدو وروسته یې د دولت د رئیس ښاغلي حامد کرزي تاوده سلامونه هم وړاندي کړه، هغوي د تېر کال لاس ته راوړني هم یو په یو یادي او د نوي راتلونکي کال په بهید کښي یې د نورو چارو پر سرته رسېدو روښنایي واچول

د خبرو د لړۍ په پای کښي د شاه مسعود (رح) جنډه د دوعاوو په کېدو سره د ښاغلي شېرزي لخوا پورته سوه. پدې دودیزه مېله کښي د ښاغلي شېرزي سره د کابل څخه هم یو شمېر لوړ پوړو پوځي او ملکي راغلو چارواکو برخه اخستې وه. د کندهار محلي خبریال زیاتوي چې د مېلې سیمه د افغانستان په ملي درې رنګه جنډېو سره ښکلې سوې او هر ځای په بریښنا سره روښانه سوی و. دلته او هلته د ننداړا غونډې او ورسره ملي اتڼونه چې د ډهل په ښکلي رغ به لا په تودښت کښي وه هم په څپو وه. او د سیمي چارچاپېر د ښار او ښېلا بیلو سیمو څخه د ورغلو کسانو لخوا د ډول ډول کرڼیو په درېدو. دودیزه لوبو او ساتېریو په کېدو سره د مېلې چاپېریال لا خوندور کړی و. د کندهار محلي د خبریال په وینا د نوي کال د لمړۍ ورځي د پیل څخه دمخه او د همدې ورځي په شپه او بیا په همدې سبا د کندهار ښار څخه بیا د شاه مسعود (رح) د دورۍ تر نژدې و پورې په ځانګړې توګه زیارت ته په ارغنداو کي د بیلي سوي لارې په اوږدو کښي د مېله والو د موټرونو لړۍ د پرلې حنځیر غونډې وه چې د شپې په اوږدو کښي به د هغوي لګېدلو څراغونو لیدونکو ته ښله خوښي او خوند وربښه

### ۞ دوشنبه د وري ۳ مه

د اطلاعاتو او کلتور رئیس ښاغلي عبدالمجید بابي د وري پر دریمه د دوشنبې په ورځ د دې ریاست د ښېلا بیلو څانګو د مسئولینو په ګډون (کندهار د تاریخ په اوږدو کښي) د جوړېدونکي سیمینار د لا ښه جوړېدو په اړه د کندهار والي ښاغلي محمدیوسف پښتون سره ولیدل

د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي د نوموړي څېړنغونډې د جوړېدو لپاره تر همدغه مهاله د تر سره سوو چارو او نیول سوو تصامیمو په اړه څرګندوني وړاندي کړې چې په خپلو برخو کښي کندهار والي ښاغلي محمدیوسف پښتون هم د یو لړ لارښوونو پېرزوینه وکړه

په دې کتنه کښي په کندهار کښي د ډله ایزو اطلاعاتو د وسایلو د چارو د لا ښه سمون په اړه هم غور وسو. په لیدنه کښي د ولایت مقام مرستیال محمد انس هم حاضر و

### ۞ دوشنه د وري ۳ مه

په همدې ورځ د کندهار ولایت اصلاحي جرګې د ښاروالۍ ریاست د غونډېو په خونه کښي غونډه وکړه

د جرګې برخه والو د نوي کال لومړۍ ورځ د ملي دفاع د وزیر ښاغلي جنرال محمدقسیم فهیم د هغې وینا هر کلی وکړ چې په هغه کې یې هر ډول زورواکي غندلې وه. جرګې یو اته کسیز پلاوی د ښاغلي سید عبدالظاهر په مشرۍ غوره کړ، څو د جرګې په استازیتوب کابل ته سفر

وکړي او د ښاغلي فهیم څخه د ده د لوړې موخې لرونکي وینا له امله ورته د خوښې مراتب او د هغه د پلي کېدو په لاره کښې خپل ملاتړ څرګند کړي

## ۞ سه شنبه د ورې ۴ مه

د اتلې ملالې زیارت به په ښکلي او غوښتونکې توګه ودان سي د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس ښاغلي عبدالمجید بابي په مشرۍ یو فرهنګي پلاوي چې په هغه کښې ښاغلي ډاکټر عبدالرزاق پالوال، ښاغلي حیات الله رفیقي، ښاغلي عبدالمالک همت او ښاغلي فضل محمد پنهان هم برخه درلوده د اتلې ملالې د ډورۍ په اړه یې په میوند کښې د ګڼ شمېر سپین ږیرو او مشرانو سره ولیدل په دې کتنو کښې د سپین ږیرو او خاپې مشرانو څخه په دې اړه هر اړخیزه معلومات راغونډ سوه چې د دغو معلوماتو په اړخ کښې به د تاریخي روښانتیا پر زیاتوب د اطلاعاتو او کلتور ریاست فرهنګي شورئ د غور وروسته وروستی پایله د دې شورا لخوا د ښاغلي بابي په مشرۍ د کندهار والي ته د وروستیو کړنو لپاره وړاندې سي

د کندهار مجلې خبریال زیاتوي چې د دغه ودانۍ کار به د ښاغلي انجینر پښتون په پاملرنه سره د ښکلي ډیزاین په لرلو ډېر ژر پیل سي

## ۞ ۴ شنبه د ورې ۵ مه

د ښوونکو د روزنې د عالي موسسې څخه وزګار سوو مسلکي ښوونکو ته د غونډې په ترڅ کښې بریلیکونه ورکړه سوه

د کندهار مجلې خبریال خبر راکوي چې په غونډه کښې کندهار والي ښاغلي محمدیوسف پښتون د یو شمېر دولتي چارواکو سره برخه اخیستې وه

د غونډې په پیل کښې د همدې موسسې رئیس ښاغلي عبدالله رحیمي وریسي کندهار والي وزګار سوو ښوونکو ته مبارکي و ویل او د ښوونکې د مقام ارزښ او په ټولنه کښې د دوی د رول په اړه یې روښانه خبرې وکړې. د غونډې په وروستي کښې بریلیکونه او یوه برخه سوغاتونه وزګار سوو ښوونکو ته وویشل سوه

## ۞ ۵ شنبه د ورې ۶ مه

د ولایت مقام اداري غونډه د ولایت مقام د مرستیال ښاغلي محمد انس په مشرۍ د ورې په (۶) نېټه د ۵ شنبې په ورځ جوړه سوه

د کندهار مجلې خبریال خبر راکړ چې په غونډه کښې ښاغلي محمدرحیم رحیمي د پلان د رئیس په توګه د غونډې برخه والو ته ور وبېژندل سو وروسته په کندهار کښې د سر شمېرنې د کار د پیلېدو په اړه او د دې چارو د سرته رسېدنې د پلاوي سره چې کندهار ته راغلی د ټولو ریاستونو هر اړخیزه ملاتړ وغوښتل سو

وروسته د اوبو لګولو د رئیس څرګندونې د دهلې د ډنډ د اوبو په اړه واورېدل سوې، هغوی د سرنې وچکالۍ سره سره د اوبو زېرمه ۱۹ متره او ۳۰ سانتي متره وښودل غونډې پرېکړه وکړه چې په راتلونکې ۴ شنبه دې د بارانو د اورېدو لپاره د حج او اوقافو د ریاست لخوا د استسقی د لمانځه د کېدو لپاره لاره هواره سي

## ۞ ۵ شنبه د ورې ۶ مه

د ورې په (۶) مه د (۵) شنبې په ورځ د محمدهوتک شپې لیسې د دولسمو ټولګیو د لومړۍ دورې ۲۱ تنو وزګار سووکسانو ته د روزګارتیا بریلیکونه ورکړه سوه. په غونډه کښې د ولایت مقام مرستیال محمدانس په خپله وینا کښې د ښوونې او روزنې د ډګر د ښوونکو اداري کارمندانو، استادانو او اړوندانو هلې ځلې چې په تېرو دوو کلونو کښې یې له ځانه ښکاره کړې ستاینه وکړه

## ۞ ۵ شنبه د ورې ۶ مه

د ملي پولیسو ۱۶۰ تنو افسرانو ته د لنډ مهاله مسلکي روزنې څخه د وزګارتیا لکبونه ورکړه سوه

د کندهار مجلې خبریال خبر راکوي چې د سهیل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو روزنیز مرکز توانېدلی دی چې ۱۶۰ تنه د لومړۍ دورې وزګار سوي افسران ټولني ته د چوپړ لپاره وړاندې کړي

هغه درنه غونډه چې په دې اړه جوړه سوې وه د کندهار والي ښاغلي انجینر محمدیپښتون په وینا سره پیل سوه. هغوی د روزل سوو ملي پولیسو درنې دندې روښانه کړې. او د وینا په یوه برخه کښې یې و ویل چې ملي پولیس چې په مسلکي توګه روزل کیږي موخه یې په ټولنه کښې د بشپړ امنیت تامین او د خلکو باور تر لاسه کول دي

د کندهار والي وروسته د روزنیز مرکز قوماندان ښاغلي جنرال نصرالله ظریفي او بیا د کورنیو چارو د وزارت استازي او په کندهار کښې د دغه مرکز سلاکار ښاغلي محمد صادق حسن او بیا په کندهار کښې د ائتلافي ځواکونو قوماندان برېتلني د موضوع په اړه په واړ سره خبرې وکړې. او هر یوه د ملي پولیسو راتلونکي دندې په ګوته کړې

## ۞ ۵ شنبه د ورې ۶ مه

د کوچنیانو د حقوقو د ساتنې ورکشاپ په کندهار کښې د انګلستان د هیواد د کوچنیانو د ساتنې د دفتر لخوا په امنیه قومندانۍ کښې جوړ سو په پیل کښې د بشر د حقوقو د خپلواک کمیسون د کندهار د سیمه ایز دفتر مسئول انجینر عبدالقادر نورزي پخپلو خبرو کښې اقتصادي او امنیتي ناوړه شرایط، فقر، بیکاري، لوږه او ډول ډول ناروغۍ او هم په کوچنیانو او نیکیو ځوانانو باندې جنسي تیري، تر وس وتلې کارونه، تښتونې او نورې ستونزې چې په اوسني پر مختللي نړۍ کښې زموږ د هیواد کوچنیان ورسره لاس او ګرېوان دي د بشر د حقوقو د خپلواک کمیسون د اندېښنې وړ وبلل

د بشر د حقوقو د خپلواک کمیسون د کوچنیانو د ځانګړي مسئولینو هم د موضوع په اړه په روښانتیا سره خبرې وکړې. په پای کښې د ورکشاپ برخه والو تر خپل منځ د نظرونو تبادله تر سره کړه

## ۞ یکشنبه د ورې ۹ مه

کندهار والي انجینر محمد یوسف پښتون د ورې پر نهمه نېټه د یکشنبې په ورځ د سهیل لوېدیځ سمت د پنځو ولایتونو د علماء کرامو سره چې کندهار ته راغلي وه د خپل کار په دفتر کښې وکتل

په دې کتنه کښې کندهار والي د سولې او ملي یو والي د ټینګښت او په هیواد کښې د ټول ټاکنو او رایو ورکولې لپاره د نوم لیکنې د بهیر پر چټکتیا او هم د بې وسلو کولو د سرشمېرنې د چارو د ښه پر مخ تګ په اړه د علماوو دندې ارزښتمې وبللې او زیاته یې کړه چې علماء د ټولنې د دیني چارو روښانه کوونکي دي باید خلکو ته حقایق څرګند کړي، او خلک وهڅوي چې د هیواد په بیا رغونه کښې کارنده ونډه واخلي او هم د ژوند د تاریکیو د راوتو په ویلاړ د ښوونې او روزنې ډګر ته پراختیا او پیاوړتیا

ور کړي د دې کتنې په وروستیو کښې ځو تنو علماؤ د نورو په استازيتوب خبرې وکړې او ملي يووالی او سوله يې د افغاني ټولنې د ژوندانه د اوږدتيا لپاره اړينه وبلل. او په دې لاره کښې يې خپل هر ډول همغاړيتوب ځرګند کړ

### ۵ شنبه د وري ۱۰ مه

په کندهار کښې د ملکي کولو او وسلو ټولولو د پروګرام لومړی پړاو د قول اردو د اوومې زرهدارې لوا په چمن کښې د يوې غونډې په جوړېدو سره پيل سو

په غونډه کښې د کندهار والي انجنير محمديوسف پښتون، د اصلاحي مشورتي جرګې رئيس احمدولي کرزي، د دولتي ادارو چارواکو او اصلاحي جرګې غړو، جنرالانو، افسرانو، سرتېرو، د ملګرو ملتو د يوناما د دفتر او بانديو هېوادو استازو هم برخه اخيستې وه

د کندهار محلي خبرېال خبر راکړ لومړی د تشريفاتي ټولي د درناوي مراسم د دوهم نمبر قول اردو د قومندان لخوا ومنل سوه، بيا کندهار والي انجنير محمديوسف پښتون د ملکي کولو ـ د نوي کړنلارې د پيل په هکله او د هغه په سرته رسېدو سره د مجاهدينو د ژوند د سمون په اړه وينا وکړه. ورپسې د دوهم نمبر قول اردو قومندان خان محمد مجاهد وينا وکړه، او د خپلو خبرو په لړ کښې يې و ويل د کړنلاره د دولت امر دی او د دولت د امر منل ژمونږ دنده ده وروسته له هغه چې ډګروال نورالله د دې قول اردو د (۲) کلونو کړنې يو په بل پسې وشمېرلې. د ملي دفاع وزارت لخوا د ۴ کسيزه کميسيون مسئول تورن جنرال عبدالخالق حليم د وسلو د ټولولو په باب ځرګندونې وکړې

په دې پروګرام کښې به زر تنه خپلې وسلې وسپارې دغه مراسم په دغه پروګرام کښې د ګډون کوونکو د پوخي پرېټ په تر سره کولو سره پای ته ورسېد

### ۳ شنبه د وري ۱۰ مه

د کندهار اصلاحي جرګې په غونډه کښې چې د دې جرګې د رئيس ښاغلي احمدولي کرزي په مشرۍ د ښاروالۍ د غونډو په لويه خونه کښې جوړه سوه خپلې ستونزې وځېړل سوې او د هوارې لارې يې وړاندې سوې

د غونډې د اجندا مسايل د جرګې مرستيال ښاغلي عبدالمجيد بابي لخوا غونډې ته د څېړنې لپاره او پر هغو د رايې اخيستنې لپاره وړاندې سوه



لومړی په خينو ولسواليو کښې

د ولسوالانو او امنيه قومندانانو د ناوړو کړنو او خلکو ته د هغو له امله د ورپېښو ستونزو او په دې مراکزو کښې د انډيوالي سيستم د ختمولو په اړه د ولايت مقام څخه د جدي کړنو غوښتنه وسوه همدارنګه د حاجي لالک په نوم د يوه پخواني سوداګر د زيانمن کېدو او پر هغه د پور لرونکو کسانو

موضوع وځېړل سوه. او پرېکړه وسوه چې د هغوی د حسابونو بيلانس دې ځرګند سي ځو وروسته يې اصلاحي جرګه د حل لاره ومومي

### سه شنبه د وري ۱۱ مه

د خرقې شريفې د زيارت دننه د ښکلو هېوادنيو غاليو په هوارېدو سره وپوښل سوه د کندهار محلي خبرېال خبر راکوي چې د دغو غاليو شمېر (۱۶) تختو ته رسېدی چې د جمهور رئيس ښاغلي حامد کرزي لخوا رالېږل سوي چې د هوارېدو مراسم يې د پاک قرآن د يوې برخې په



لوستلو او دوعاوو په کېدو سره پيل سوه چې وروسته د دغو غاليو هوارېده د کندهار والي ښاغلي انجنير محمد يوسف پښتون په مشرتوب تر سره سوه چې تر څنګ يې د ولايت مقام مرستيال ښاغلي محمد انس د اطلاعاتو او کلتور رئيس ښاغلي عبدالمجيد بابي، کندهار ښاروال ښاغلي عبدالله پوپل، د علماؤ د شورا رئيس ښاغلي عبدالله فياض او د اقوامو او قبايلو رئيس ښاغلي عبدالباقي رغبت د يو لړ نورو قومي مشرانو او علماؤ کرامو سره برخه درلوده

### سه شنبه د وري ۱۱ مه

د امريکا کوچنيانو د کندهار د کوچنيو زده کوونکو سره د اوبو د پتکانو مرسته د کندهار ولايت د مرستيال ښاغلي محمد انس لخوا د پوهنې د رئيس ښاغلي محمد شعيب وفا په ملګرتيا په يو شمېر ښوونځيو کښې پر زده کړيانو ووېشل سوه چې دا لړۍ به د همدې ۳۰۰۰ پتکانو تر وروستۍ عدده پورې دوام ولري

### ۵ شنبه د وري ۱۳ مه

د کندهار ولايت مقام ځرګنده کړه چې يو شمېر اولسوالان تبديل او نوي ټاکل سويدي دا ځرګندتيا پدې ډول خپره سوه ملا مسعود د ډنډ اولسوالۍ پخوانی اولسوال د ارغنداود ولسوال په توګه، حاجي نېک محمد د ارغنداو اولسوال د ډنډ د اولسوال په توګه نيازمحمد سرحدي د پنجوايي د اولسوال په توګه، حاجي پاياو د پنجوايي پخوانی اولسوال د ارغستان د اولسوال په توګه. او حاجي خيرالدين د نيش د اولسوال په توګه ټاکل سويدي

### ۵ شنبه د وري ۱۳ مه

په کندهار کښې به د کوکنارو د کښت سم نيمايي د منځه يوړه سي دغه ټکي کندهار والي ښاغلي انجنير محمد يوسف پښتون په هغه

غونډه کښي چې د ولسوالانو او ولسي شوراګانو د غړو په ګډون د ولايت مقام په مېلمستون کښي جوړه سوې وه څرګند کړه هغوي و ويل "دا کمپاين به په خلورو ورځو کښي تر سره کېږي" هغوي د اولسوالانو څخه وغوښتل تر هغو پخپلو سيمو کښي د پرتو ستونزو د هوارې لپاره خانګړي پلانونه جوړ کړي. څو دهغو له مخې هغه ستونزې هواري کړه سي

## ۞ ۵ شنبه د وري ۱۴ مه

د ولايت مقام په اداري غونډه کښي د لوړو مسايلو د غور تر څنګ د اوبو لګولو رئيس انجنير شېرمحمد عطايي خبرداري ورکړ چې د کندهار د دهلې په ډنډ کښي بوازې ۱۹ متره او ۴۰ سانتي متره اوبه زېرمه دي چې کرونده ګر دي د جوارو ـ ماشو او نورو توکيو د کرلو څخه ډډه وکړي څکه زېرمه سوې اوبه يوازې د باغونو او ونو د اوبېدو لپاره لا هم د ټوله کال په بهېد کښي نه بسېږي

## ۞ دوشنبه د وري ۱۷ مه

د کندهار ولايت د اصلاحي جرګې غونډه د دې جرګې د رئيس احمدولي کرزي په مشري جوړه سوه

په دې غونډه کښي د قرآن مجيد د څو مبارکو آيتونو تر لوستلو وروسته د جرګې د مرستيال ښاغلي عبدالمجيد بابي لخوا د غونډې لپاره په پام کښي نيولو مسئلو نوم ليک ولوستل سو د دغو مسايلو په لړ کښي د دهلې د ډنډ څخه د اوبو د را ايله کېدو په اړه په داسې حال کښي چې کندهار والي ښاغلي انجنير محمد يوسف پښتون او د کرهڼي او اوبو لګولو رئيسان هم حاضر وه پرېکړه وسوه چې د غوايي پر ۱۶ مه نېټه دې د ډنډ څخه اوبه د باغونو او کښتونو د اوبېدو لپاره را ايله سي ددې تر څنګ د حاجي عزيز په کلي کښي د خلکو د خپل سره کورو او هم د عيدګاه جادې د سهيلي اړخ د دوکانونو د ړنګېدو په اړه تر هر اړخيزه خبرو وروسته پرېکړې وسوې

## سه شنبه د وری ۱۸ مه

په کندهار کښي د ملکي او بې وسلې کولو د چارو په بهېد کښي ۸۵۴ ميله سپکې او درنې وسلې راټولې سوې دي او خلک يې د مخاصمو ورهېرو او کسونو په کارخانو کښي ورکډ کړيدي

د دغه چارو بهېد چې د يوې اونۍ را پديخوا په کندهار کښي پيل سوي دي تر اوسه ۸۵۴ ميله خپلې درنې او سپکې وسلې پاکل سوو کسانو ته سپارلي دي د اولسمبر تر پول پاکنو پوري په دغه سيمه د ۴۰۰۰۰ ته ورسېږي

## ۞ ۵ شنبه د وری ۲۰ مه

په کندهار کښي ملي اردو ته د جذب سوو کسانو د راټولېدو مرکز د کندهار د ګمرک څنګ ته د ځانګړو مراسمو په ترځ کښي پرانستل سو پدغو مراسمو کښي د ستر درستيز د حلب او جذب قوماندان ډګر جنرال محمد ابراهيم د خپلو خبرو په لړ کښي و ويل تر اوسه ملي اردو ته جذب سوي منسوبين په ۱۳ کندکونو کښي ۱۳۸۵۲ تنه دي چې په هغوي کښي ۶۴۵۶ تنه پښتانه ۵۵۶۵ تنه يې تاجک ۴۱۱ تنه ازبک او ۳۰۹ تنه يې د نورو ټبرونو څخه دي. د ښاغلي محمد ابراهيم وروسته د کورنيو چارو وزارت استازي تورن جنرال ګل نبي د ملي اردو د اړتيا په اړه خبرې وکړې بيا د نړيوال ائتلاف استازي هم د ملي اردو د جوړېدو په لار کښي د خپلو مرستو د دوام يادونه وکړه بيا د دوهم تمبر قول اردو قوماندان ډګر جنرال ښاغلي خان محمد مجاهد د دې مرکز د جوړېدو هر کلي وکړ او هغوي و ويل د دې قول اردو څخه تر اوسه ۷۰۰ تنه ملي اردو ته وربېژندل سويدي

په وروستي برخه کښي کندهار والي ښاغلي انجنير محمديوسف پښتون د ملي اردو د روزنيز مرکز پر جوړولو ټينګار وکړ د کندهار محلي خبريال خبر راکوي چې دغه مرکز به د لنډ مهاله روزنې لپاره وکړي وروسته به خوانان د بنسټيزه روزنې لپاره و مرکز ته لېږل کېږي

## ۞ سه شنبه د وري ۱۸ مه

په کندهار کښي د ډېرو ماتولو فابريکه پرانستل سوه د ممتاز انټرنېشنل په نوم د ډېرو ماتولو فابريکه د بن پله په سيمه کښي د ولايت مقام د مرستيال ښاغلي محمد انس لخوا په داسې حال کښي چې د دولتي ادارو يو شمېر مسئولين هم حاضر وه پرانستل سوه هغو د دې فابريکې د څښتن څخه و دې ګټور او اړين کار ته د پاملرنې له امله کور ودانۍ و وايه، او هيله يې وکړه چې نور پانګه وال هم د خپل هېواد د جوړېدو پلاره کښي تر خپله وسه ګډون اوچت کړي

دکندهار محلي خبريال خبر راکوي دغه فابريکه د سړکانو او ودانيو لپاره د (۷) ډوله ډېرو توليد کوي چې په ۲۴ ساعته کښي به ۴۰۰۰ مټره مکعبه ډېره ماتوي

## ۞ ۵ شنبه د وري ۲۰ مه

د کندهار د اداري مجلس غونډه د کندهار والي ښاغلي انجنير محمد يوسف پښتون په مشري د ولايت مقام په مېلمستون کښي جوړه سوه په دې غونډه کښي د ټولو ادارو څخه وغوښتل سوه چې د اړوندو ارګانو تر څنګ دوی هم و ملي اردو ته د جلب او جذب لپاره د نسبېړه تبليغاتي کار وکړي او خلکو ته د ملي اردو د جوړولو اهميت او اړتيا څرګنده کړي

همدارنګه د ودانيو د ډېرو د برابرولو او د سوړ اندام د عږد څخه د ډېرو د ماتولو لپاره د ګړنلارې د جوړېدو سپارښته وسوه او دې جارې نه د کانو او صنايعو د رئيس په مشرۍ د ښار او کلي جوړولو د سړکونو د مراقبت او ساتنې، او ښاروالۍ او ساختماني چارو د مسوليتو په ګډون يو کميسيون وټاکل سو

وروسته د ززي په اولسوالۍ کښي د غوړو جوړولو د فابريکې په هکله د پلان رئيس څرګندونې وړاندې کړې او هيله يې وکړه چې نور سوداګر هم د ورته فابريکو جوړېدو ته ملا وتړي

په غونډه کښي يو لړ نورې مسلې هم وڅېړل سوې او په اړه يې پرېکړې وسوې

## ۞ دوشنبه د وري ۲۴ مه

د طبعي پېښو په وړاندې د مخنيوي د لارو چارو په باب د خلکو د نظرونو د راټولولو ورکشاپ د طبعي پېښو د مخنيوي د لوی رياست لخوا د کندهار ښاروالۍ د غونډو په لويه خونه کښي جوړ سو

غونډه د پاک قرآن د څو سپېڅلو آيتونو په لوستلو پيل سوه وروسته د طبعي پېښو د مخنيوي د اداري لوی رئيس ښاغلي سلطان محمد عبادي پرانستونکي وينا وکړه او د ورکشاپ پر اړتيا او اهميت يې رڼا واچول. وريسې د کندهار ولايت مرستيال ښاغلي محمد انس. د هلمند اداري

رئیس ښاغلي غلام محی الدین د اصلاحي مشورتي جرگې رئیس ښاغلي احمدولي کرزي د بشر د حقوقو د سیمه ایز دفتر مسئول انجینر عبدالقادر نورزي، د اطلاعاتو او کلتور رئیس او د اصلاحي مشورتي جرگې مرستیال ښاغلي عبدالمجید بابي په وار سره د موضوع په اړه وینااوې وکړې، او په دې اړه یې خپل نظریات او وړاندیزونه واورول

### ۞ دوشنبه د وري ۲۴ مه

په کندهار کښې د ټولو هغو دولتي مځکو چې په دې وروستیو کښې قبضه سوي د غصب څخه د خلاصولو لپاره د ولایت مقام لخوا د ټاکل سوي کمیسون کار په بېړه روان دی، دغه کمیسیون د جنرال عبدالنبي اذري، جنرال محمدنعیم گراني، جنرال اخترمحمد، د دوهم نمبر قول اردو قومندان جنرال خان محمد، د اصلاحي جرگې د رئیس احمدولي کرزي په گډون د کندهار والي ښاغلي محمد یوسف پښتون په مشري جوړ سوی دی. هغوی د اتو ورځو راپدېخوا د دغه ډول قبضو د منځه وړلو کار پیل کړی دی، او دنده ورته سپارل سوې چې د مرچې کوټل څخه د لوی ویالې پر لور ټوله ساحه، میرویس مېنه، دافع هوا، گندیگان، د پله باغ، حاجي حبیب کلي او نورو سیمو څخه د قبضو ټوري منگولې لنډې کړي. خکه دغه ناولو قبضو د ښاروالۍ د ماسټر پلان د تطبیق په وړاندې خنډونه او ستونزې رامنځ ته کړېدي

د کندهار مجلې خبریال خبر راکوي چې د دغه کار له بهید څخه د کندهار ولایت مرستیال ښاغلي محمد انس د دې کمیسیون د یو شمېر غړو په گډون لیدنه وکړه او د کار د دوام غوښتنه یې وکړه. هغوی وویل "د دغو ټرونو په بدل کښې مستحقینو ته یوه نمره مځکه په را وروسته کښې د ماسټر پلان سره سم ورکول کېږي

### ۞ شنبه د غوایي ۵ مه

جمهور رئیس ښاغلي حامد کرزي د کندهار ـ ارزگان ـ زابل او هلمند ولایتونو د مرکز او اولسوالیو د خلکو د استازو سره د ولایت مقام په مېلمستون کښې وکتل

نوموړي د دې کتنې په بهید کښې په تېرو دوو نیمو کلونو کښې د دولت د کړونو د بیانولو په ترڅ کښې له افغانستان سره د نړۍ د هیوادونو د مرستې او د هغو د لگولو د لارو چارو، د ملي اردو او پولیسو د جوړولو ، د سولې او امنیت د ټینگښت او د ورانکارو عناصرو د عملونو په شنډولو کښې د هغو د ارزښت په باب خرگندوني وکړې

ښاغلي حامد کرزي د ورانکارو عناصرو د عملونو او د سرکونو او لویو لارو د جوړولو د وسایطو د سوځولو په اړه وویل

"دغه عناصر د پردیو په اشاره په دغه شان عملونو لاس پوري کوي او دوی په حقیقت کښې زموږ د خلکو د پت او عزت دښمنان دي، او نه غواړي چې زموږ خلک آرام او سوکاله ژوند ولري، له دې امله په افغانستان کښې د سولې په باب د ټینگښت او د خلکو د نېکمرغۍ د تامینولو په خاطر له خلکو سره ستاسو همکاري ضروري ده" د خلکو استازو په وینااوو کښې د دولت سره خپله هر اړخیزه همکاري خرگنده کړه، د یادوني وړ ده چې وسله والو کسانو په دې وروستیو وختونو کښې د شپې له خوا په امریکایي موسسې پورې اړوند سړک جوړولو وسایل او وسایط چې د کندهار ولایت د پنجوایي مربوطاتو کښې د سړک جوړولو په کار کښې کار ورڅخه اخیستل کېدې وسوځول د بل خبر له مخې ښاغلي حامد کرزي د کندهار ولایت د ښخو او سوداگرو د استازو سره په جلا جلا تو غونډو کښې د

هغوی ستونزې واورېدې او د حلولو په لاره کښې یې اړوندو څانگو ته لارښووني وکړې، دغه راز د دولت رئیس په هغه مطبوعاتي کنفرانس کښي چې د خبریالانو په گډون په کندهار ښار کښي جوړ سوی و برخه واخیسته، د بې وسلې کولو، نشه یي توکو د کرکېلې او د ورانکارو عناصرو د فعالیتونو په باب یې د خبریالانو پوښتنو ته ځوابونه وویل

د بل خبر له مخې د دولت رئیس د حضرت محمد ﷺ د مبارکې خرقې، میرویس نیکه، احمدشاه بابا، د آزادۍ د لارې د شهید عبدالاحد خان کرزي او شهید حاجي عبدالطیف له زیارتونو څخه لیدنه وکړه او د هغوی ارواحونو ته یې د مغفرت دوعاوې وکړې

### ۞ سه شنبه د غوایي ۸ مه

د غوایي د میاشتې ۸ مه د افغانستان د خلکو د جهاد د بریالیتوب ۱۲ مه کلیزه وړمه ورځ د کندهار ښار د سپورټي لوبغالي تر څنگ د څانگړو پوځي مراسمو په ترڅ کښې ولمانځل سوه

په دغو مراسمو کښې د کندهار ولایت د ملکي او پوځي ادارو د رهبري پلاوي غړي، په کندهار کښې د هندوستان، پاکستان او ایران د حکومتونو د قونسلگریو مسئولینو او غړو، د ملگرو ملتو د دفترونو مسئولینو، قومي مشرانو، سپین ږیرو، دیني عالمانو او په زرگونو خلکو برخه لرله وروسته له هغه چې د قرآنکریم څو مبارک آیتونه تلاوت سول، کندهار والي د نوموړې ورځي په اړه په خپلو خبرو کښي لومړی د ملت بابا، د دولت رئیس او ټول افغان ولس ته مبارکي وویل بیا یې د پرغلگرو قواوو په وړاندې د افغان مجاهد ولس د اتلولیو او قربانیو څخه یادونه وکړه او ویې ویل هیله لرم چې دغه پرتمینه ورځ د تل لپاره تر دغو په شو مراسمو سره ولمانځل سي، بیا د دوهم نمبر قول اردو قوماندان ډگر جنرال خان محمد مجاهد د قول اردو د قطعاتو تر معاینې وروسته کندهار والي ته معلومات وړاندې کړل، بیا د پوځي قطعو د پرېټ مراسم پیل سول، په دغه پرېټ کښي د قول اردو او پولیسو قطعات، د لیسو او ښوونځیو زده کوونکي او د سپورټي لوبغاړو ډلې شاملې وې په ښه نظم او ترتیب یو په بل پسې د لوړ مځي ته تېر او د دوی د احترام مراتب د کندهار د رهبري پلاوي له خوا ومنل سول

### ۞ سه شنبه د غوایي ۸ مه

مولوي عبدالباري چې یو جید عالم و د لمانځه د اداینې وروسته پداسي حال کښي چې دکور پر لور روان و د نامعلومو کسانو لخوا وویشتل سو او په شهادت ورسید

(انالله و انا الیه راجعون)

### ۞ ۴ شنبه د غوایي ۹ مه

د شهید مولوي عبدالباري جنازه په داسې حال کښي چې د افغانستان د منځمهاله اسلامي دولت د رئیس او کابینې په استازیتوب دکور او ښار جوړولو وزیر ښاغلي گل آغا شېرزي هم حضور درلود د سلگونو خلکو په گډون خاورو ته وسپارل سوه

### ۞ ۵ شنبه د غوایي ۱۰ مه

د شهید مولوي عبدالباري فاتحه په خرقه شریفه کښي واخیستل سوه پدغه فاتحه کښي د زرگونو هیوادولو تر څنگ د کور او ښار جوړولو وزیر گل آغا شېرزي، کندهار والي انجینر محمدیوسف پښتون او د اصلاحي

جرګې رییس احمدولي کرزي هم ګډون وکړ. د فاتحې په لړ کښې کندهار والي د جمهور رئيس د خواخوږۍ بلیغونې پیغام ولوست او هم یې د کندهار ولس ته ډاډ ورکړ چې د امنیت د ساتلو لپاره به جدي ګامونه واخیستل شي.

**۞ شنبه د غوایي ۱۲ مه**

د حضرت محمد د زیږېدو سپېڅلي ورځ د کندهار په ښار جامع جوماتونو کښې ونمانځل شوه. د لمانځنې درنې غونډې د خرقې مبارکې په جامع جومات او د مولوي عبدالرب فیاض په جامع جومات کښې د خلکو د پراخو برخو په برخه اخیستنه سره پداسې حال کښې چې د قرآن پاک ختمونه او خیراتونه یې هم په لړ کښې تر سره شوه روانې وې.

په غونډو کښې کندهار والي انجنير محمدیوسف پښتون او د پوځ او پولیسو منسوبینو د اصلاحي جرګې د رییس او غړو په ګډون برخه واخیسته او په لړ کښې یې د سراسرې سولې او امنیت د ټینګښت او خلکو د نیکمرغۍ لپاره ګڼ شمېر دوعاوې وشوې.

**۞ دوشنبه د غوایي ۱۴ مه**

د اصلاحي جرګې نوښتي غونډه د دې جرګې د رییس ښاغلي احمدولي کرزي په مشرۍ پداسې حال کښې چې کندهار والي انجنیر محمدیوسف پښتون او د اصلاحي جرګې مرستیال ښاغلي عبدالمجید بابی کندهار ښاروالي عبدالله پوپل او د قبایلو چارو رییس او د جرګې منشي ښاغلي عبدالباقي زعمت هم حاضر وو جوړه شوه.

په غونډه کښې د پنجوایي ولسوالۍ د خلکو اولسي شورۍ لخوا ژمنه چې د خلکو پوره استازیتوب یې نه کاوه او نه یې د دې اولسوالۍ د خلکو د ستونزو په لیرې کېدو کښې فعاله ونډه اخیستې وه د ښیرنیا پرېکړه یې وشوه همدا راز د دهلي د ډېډ د اوبو د را ایله کېدو او اوبو لګولو پر ټګ لورې خبرې وشوې او پرېکړې تر سره شوې.

**۞ سه شنبه د غوایي ۱۵ مه**

د پنجوایي په ولسوالۍ کښې تصفیوي عملیات د دوهم نمبر قول اردو د اوومې زغره والي لوا د قومندان ښاغلي جنرال کراني په مشرتوب ادامه لري.

چې په ترځ کښې یې ۳۰ میله وسلې ۴ عرادې موټران د دولتي خواکونو لاس ته ورغلي دي او تر اوسه ۲۲ تنه نیول شوي دي چې یو یې د پاکستان تبعه دی.

تېره اونۍ چې د پنجوایي پر اولسوالۍ برید شوی و، همدا پاکستاني هم مثلي چې په هغه برید کښې یې برخه لرله. د دوهم نمبر قول اردو قومندان ډګر جنرال خان محمد مجاهد دا ومنل چې د اوومې فرقې یو تن قومندان عبدالرازق د هغه د پنځو تنو ملګرو سره د زنګي آباد په سیمه کښې وژل شویدي.

**۞ ۴ شنبه د غوایي ۱۶ مه**

په کابل کښې د ایران اسلامي جمهوریت د سفارت لمړي مرستیال ښاغلي علي رضا سالاریان پداسې حال کښې چې د ولایت مرستیال ښاغلي محمد انس هم حاضر و، د اطلاعاتو او کلتور رئيس ښاغلي عبدالمجید بابی سره د دوی د کار په خونه کښې وکتل. د کتنې په ترځ کښې هغوی لیوالتیا څرګنده کړه چې ډېر ژر به د دوی په مالي مرسته د کتابتون تر څنګ د مطالعې لپاره د لوبې خونې د جوړېدو کار پیل شي.

**۞ یکشنبه د غوایي ۲۰ مه**

کندهار والي ښاغلي انجنیر محمدیوسف پښتون د ناټو د ملکي برخې مسئول حکمت چیتن سره د خپل کار په دفتر کښې پداسې حال کښې وکتل چې د اصلاحي جرګې رئيس ښاغلي احمدولي کرزي او یو شمېر غړي یې هم ناست وه. هغوی د خپلو خبرو په ترځ کښې څرګنده کړه چې موږ به نړیوال مرستو ته لا لېواله کړو څو دلته امنت ټینګ او اقتصاد پر پښو ودرېږي او افغانان د یوه قانوني دولت پر جوړېدو بر لاسي شي. کندهار والي د کندهار د خلکو په استازیتوب د نړیوالو مرستو څخه مننه وکړه.

**۞ یکشنبه د غوایي ۲۰ مه**

د سهیل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو د روزنیز مرکز د څلورمې دورې څخه ۳۶ تنه افسران فارغه شوه. او هغوی ته د یوې غونډې په ترځ کښې کندهار والي انجنیر محمدیوسف پښتون. د دې مرکز قومندان جنرال نصرالله ظریفي او د دې مرکز باندنی سلاکار پاول تیف په وار سره د ملي پولیسو پر اړتیا خبرې وکړې. وروسته فارغینو ته مبارکي وویل شوه. او د بریالیتوب غوښتنه یې وشوه.

**۞ ۲ شنبه د غوایي ۲۱ مه**

د اصلاحي جرګې غونډه د دې جرګې د رئيس ښاغلي احمدولي کرزي په مشرۍ په داسې حال کښې چې کندهار والي ښاغلي محمدیوسف پښتون هم حاضر و د ښاروالۍ د غونډو په خونه کښې جوړه شوه.

چې په هغه کښې د پنجوایي اولسوالۍ د اولسي شورا د نیمګړتیا بر بشپړتیا ـ د اوبو د را ایله کېدو سره په څینو ځایو کښې د اوبه خور بر ستونزو. همدارنګه په ټولنه کښې د اخلاقي فسادونو د مخنیوي په اړه غور او پرېکړې وشوې.

**۞ ۴ شنبه د غوایي ۲۴ مه**

د اطلاعاتو او کلتور رئيس ښاغلي عبدالمجید بابي په مشرۍ یو فرهنګي پلاوي چې په ترکیب کښې یې تکړه لیکوال ډاکټر عبدالرازق پالوال، پوهنتون رئيس ښاغلي استاد حیات الله رفیقي، ښاغلي استاد فضل محمد پنهان او ښاغلي عبدالمالک همت برخه لرله د میوند د اولسوالۍ څخه لیدنه وکړه په همدې اولسوالۍ کښې د اتلې (پیغلې ملالۍ) د ګور د جوړېدو په اړه یې د میوند اولسوالۍ د اولسوال ښاغلي شیراحمد حقیار او د دې اولسوالۍ د اولسي شورا غړو څرګندونې او نظریات راغونډ کړه چې د هغو پر بنسټ به د دغې اتلې پیغلې ګور ډېر ژر د هغه انځې له مخې جوړ شي کوم چې خپله کندهار والي ښاغلي انجنیر محمدیوسف پښتون لخوا برابره شویده.

**۞ ۵ شنبه د غوایي ۲۵ مه**

د اداري مجلس غونډه د کندهار والي انجنیر محمدیوسف پښتون په مشرۍ پداسې حال کښې چې د ولایت مقام مرستیال ښاغلي محمدانس هم حضور درلود د ټولو دولتي ادارو مسئولینو په ګډون جوړه شوه.

په غونډه کښې د حج او اوقافو ریاست او ترافیکو ته د چارو د لا ښه والي په برخه کښې د لارښوونو تر څنګ پرېکړه وشوه چې د اولسوالیو د ستونزو د څرګندتیا لپاره دې د اداري غونډې له منځه جوړ شوی پلاوی د هغو اولسوالیو څخه لیدنې وکړي.

همدارنګه د باندنیو موسساتو د موټرانو د پلېټو او د موټرانو د پلورلو پر مهال د دوهم چا په نوم د لاس وندونو د جوړېدو. او ګاز او تیلو پلورنځیو لپاره د ځای ټاکلو په اړه پرېکړې وشوې.

په غونډه کښې د مرافعې محکمې نوی رئيس ښاغلي عبدالحکیم هم د غونډې برخوالو ته ور وپېژندل شو.



# په کندهار کښي
# د ملي پیوستون اویا پروژې کار کوي

احمد جاوید "سعادت"

د ملي پیوستون د پروګرام کار چې د نړیوال بانک په مالي مرسته په افغانستان کښي پلي کیږي. له تېر یوه کال راهیسي یې د دولت د نورو پرمختیایي پروژو تر څنګ د کلیو په بیا رغونه او بیا جوړونه کښي ډېر څه کړیدي، او د کلیو د تخنیکي پرمختګ یا بیا رغاوني تر څنګ یې په ټولنیز جوړښت کښي هم مثمر رول لوبولی دی. اساساً د ملي پیوستون پروګرام د څو هدفونو له کبله غوره دی.

لمړی دا چې د افغانستان په عمراني تاریخ کښي لمړنی پروګرام دی چې خلک خپل ستونزمن لومړیتوبونه په ګوته کوي او له خپلي بشري قوې څخه په ګټې اخیستني سره پخپله پروژې پلي کوي. پدې کار سره دوهم هدف داسي اټکل کولای سو چې د کلي خلکو د دې تر څنګ چې د یوې نوي کاري پروژې او په پای کښي یې د یوه ټولنیز تاسیس څښتنان سول، ګټه یې هم د دوی د اقتصاد د پیاوړتیا لپاره په کار ولوېده.

دریم هدف هم لدې څخه منتبه کولای سو. هغه داسي چې کلیوال به کله پخپلو لاسونو د یوه جوړ سوي تاسیس په ورانولو کښي اقدام کوي او هم به هیڅکله بل چاته دا مجال ورنکړي چې د دوی ټولګټي تاسیسات له خطر سره مخ کړي.

څلورم هدف دا دی چې د ملي پیوستون پروګرام سربېره پر دې چې کلیوال د یوې نوي پروژې څښتنان کوي او عمراني ګټه یې په لاس ورځي په خلکو کښي د ټولنیز ثبات لپاره هم ښه زېری دی چې پر کلیوالي سطحه د دوی شورا چې پکښي د شورا د رئیس، مالي چارو د مسئول، مرستیال او د غړو ټاکل زموږ د ذکر سوي ادعا ښه ثبوت دی. له بلي خوا دولت هم د بیا رغاوني په اړخ کښي د ملت د قناعت لپاره د ملي پیوستون د ګټور پروګرام په رڼا کښي له نورو سره پراخ استدلال کولای سي. لکه څرنګه چې مو مخکښي ولوستل د ملي پیوستون پروګرام له تېر یوه کال راهیسي د افغانستان په ډېرو ولایتونو کښي پیل سویدی چې کندهار یې د امتحان او عملي اقدام پیلامه ده، تر دې دمه پوري د کندهار په دریو ولسوالیو کښي د ملي پیوستون د پروګرام اویا پروژې تر لاس لاندي دي، او دغه لړۍ به تر ۲۰۰۵ میلادي کال پوري په ټول افغانستان کښي ۲۰۰۰۰ کلیو ته ورسیږي یعني د افغانستان د ټولو ولایتونو په ۲۰۰۰۰ کلیو کښي به د ملي پیوستون د پروګرام پروژې پلي سي.

ګرانو هیوادوالو ته معلومه ده چې افغانانو په تېرو پنځه ویشت کلنو کورنو ورانونکو جګړو کښي هر څه له لاسه ورکړل، ټولنیز تاسیسات وران سول، مکتبونه وسوځول سول، کلي ونړېدل، سړکونه خراب سول، فابریکې له فعالیت څخه ولوېدلې او په معنوي لحاظ مو تعلیم تربیې، کلتور او علمي کارونو ضربه ولیدله نو په یوه ځل د افغانستان ټولي تشي ډکول ناممکنه خبره ده نو خکه د ملي پیوستون په پروګرام کښي زیار ایستل کیږي چې د خلکو د غوښتنو لومړیتوبونه په ګوته سي تر څو یې بېړنۍ ستونزي ور حل سي. تر دې دمه پوري د کندهار ولایت په ډنډ، دامان او ارغنداو ولسوالیو کښي د اویا پروژو په ترڅ کښي پر ۶۰ کیلو متر سړک باندي د جغل اچوني کار، په مختلفو ساحو کښي یا خو پای ته رسېدلي او یا هم د پای ته رسېدو په حال کښي دي. ۲۴۰ پلچکان جوړ سوي، ۲۵۴ لاسي بمبې نصب سوي دي، ۳۱۴۰۰ کاریزونه پاک سویدي، د اوبو ۸۶۰۰ کانالونه پاک سویدي، د سیندونو د اوبو په مقابل کښي $m^3$ ۱۳۵۷ محافظوي دېوالونه جوړ سویدي، درې دانې سیفونونه جوړ سویدي، $m^3$ ۴۵۷ ګابیونونه جوړ سویدي. د نل غزوني یوه پروژه تر لاس لاندي ده او عملاً یې کار جریان لري، او همدا راز د ډېزلي بریښنا یوه پروژه روانه ده. د ذکر سوو اویا پروژو کار چې د کندهار ولایت د دریو ولسوالیو په مختلفو کلیو کښي روان دی مجموعي لګښت ۴۸۰۰۰۰۰۰ (اته څلویښت ملیونه افغانۍ) او یا هم یو ملیون امریکایي ډالره دی موږ څو خله د ملي پیوستون د منشور پر مختلفو اړخونو

باندې وخت پر وخت د همدې پروګرام د پر مخ بیوونکو لخه کلیو پراختیا ریاست، د ملي پیوستون د پروګرام د مشاور کمېټې دفتر او د همدې پروګرام د همکارې موسسې د استازو سره د ګردې مېزونو او انفرادې مرکو په شکل موضوعات شریک کړیدي. خو په دې وروستیو کښې د ملي پیوستون د کندهار د دفتر لخوا د ژورنالستانو په یوه وربلل سوي کنفرانس کښې مو په کندهار کښې د ملي پیوستون د پروګرام د مسئول ښاغلي عبدالاحمد نعیمي نظر د پروګرام د روان بهیر په هکله وغوښته ده داسې و ویل "په کندهار کښې د ملي پیوستون د روان بهیر څخه خوښ یو او الحمدالله د هغو نورمونو په اساس روان دی کوم چي په لمړیو کښې د ملي پیوستون په جوړښت کښې پرې موافقه سوې وه"

ښاغلی انجینر ارسلا همدرد بیا د ملي پوستون پروګرام یوه بل اړخ ته په اشاره سره و ویل چې "د افغانستان د عمراني چارو په ټول تاریخ کښې د لمړي ځل لپاره پانګه د خلکو په واک کښې ورکول کیږي او دوی خپل لمړنی مشکلات پرې حلوي. دا چې د کندهار ولایت د هېبتات موسسه د ټولنېزو اصلاحاتو په اړخ کښې د ملي پیوستون د پروګرام سره د یوې همکارې موسسې په شکل کار کوي د همدې موسسې مسئول ښاغلي عبدالباقي "پوپل" د ټولنیزو اصلاحاتو په نظر کښې نیولو سره د ملي پیوستون د پروګرام د ګټو په هکله راته و ویل: "د پروګرام ملي هدف ټولنیز جوړښت دی. لکه څرنګه چي د همدې پروګرام تخنیکي یا ساختماني هدف ګټمن دی، ټولنیز جوړښت هم پکښې خاص ارزښت لري او د همدې پروګرام پر اساس افغاني ټولنه د خپل حکومت سره نژدې کیږي."

د ډنډ ولسوالۍ د کاکړانو د ګوش خانې د کلي د ملي پیوستون د شورا رئیس د خپلې پروژې په هکله راته و ویل: "زموږ پروژه پر سړک باندې د جغل اچولو ده چي ۴۴ کسان پکښې کار کوو او خکه مو دې کار ته لمړیتوب ورکړ چې د سړک په جوړېدو سره به زموږ راتلونکې پروژې په آسانۍ سره پلي کړو او زیاته یې کړه چې تر دې وروسته غواړو د روغتیایي او زراعتي اوبو د برابرولو پروژې پلي کړو خکه چې د وچکالۍ د اوږدوالي له کبله مو په سلو کښې اویا زراعت له لاسه ورکړی. پدې بیربرو چې د ښځو د اوبو د ستونزې سره به خدای مکره لاس او ګرېوان سو.

په کلیو کښې د ملي پیوستون د پروژو لپاره په لمړي قدم کښې ۵۰٪ لګښت ورکول کیږي کله چي ورکړل سوي مبلغ ختم سو بیا پاتې ۵۰٪ ورکول کیږي. دا څکه چې د نیمایي کار د پای ته رسېدو سره سم د هېبتات مشاور کمېټې او بیا رغاوني ریاست یو ګډ پلاوی د رواني پروژې کار له نژدې ګوري چې د کیفیت او کمیت په لحاظ علمي او ساختماني تشې ونلري نو دوهم نیمايي لګښت ورکول کیږي او که په کار کښې شفافیت نه وي او یا هم نوري ساختماني ستونزې ولري نو بیا دوهم نیمايي لګښت نه ورکول کیږي.

---

## د ويني ګروپونه او انساني شخصیت!

په اساس درجه بندي سول د B ګروپ ښځتنانو د دندو د ښه اجراء له کبله له ټولو نه ښه نمرې په لاس راوړي او په خان کلک باور د هغوي د غوره صفتونو څخه وشمېرل سوه.

پروفیسور دیلاکور د هغو اشخاصو په هکله چې د ويني ګروپ یې AB دئ وایي:

"دا هغه خلک دي چي خپل حواس په ښه ډول نه سي اداره کولای، نظر ئې ډېر ژر بدلیږي، او حتی کله کله د خان سره هم توافق نه سي کولای. د خپلو مشکلاتو او ستونزو په هکله چا ته څه نه وايي، او کوښښ کوي چي خپله یې حل کړي، په دوستی، محبت او ګډ ژوند کښې ایده آل خاصیتونه لري، د خپلې شخصي نېکمرغۍ دومره پروا نه لري خو د مقابل لوري (زوج) نېکمرغي او خوښي ورته قناعت بخښونکي احساس ورکوي.

د O ګروپ لرونکي تل د حرکت په حال کښې او له انرژۍ ډک معلومیږي، مبتکر او د ټینګي ارادې څښتنان وي، کله نا کله یې په ناڅاپي توګه طبیعت غمګین کیږي. د ويني د صفر ګروپ نسبتاً ښه ګروپ ګڼل سوی دئ. له بلي خوا د مځکې پر مخ تر اوسه پوري ډېر زیات خلک سته چې حتی د خپلې ويني ګروپ نه پېژني. ښه او مناسبه دا ده چي هر شخص د خپلې ويني د ګروپ په هکله وپوهیږي. جاپانیانو په وروستیو وختونو کښې د ويني د ګروپونو د پېژندني سره خاصه علاقمندي ښودلې ده او چې کله جاپانیان خپله یوه اندازه وینه د مرستې په ډول هدیه کوي په زیاته مینه د خپلي ويني ګروپ یادابښت اخلي او په یاد کښې یې ساتي.




# د یتیم آرزو

ژړل یې …

مګر نه د دې لپاره چي د کاسیکیټ خولی یې زړه وه، یا یې د اختر پـه شـپه ګلالي کالي له اوتو پاته سوي وه …

ځکه چي دا یې یو هم نه درلوده …

نو ولي یې ژړل ؟

څه آرزو یې وه ؟

د اختر ورځ وه، لوی او کم خوښي کول، په تېره بیـا د ده همزولـو پـه مسـته خندا خندل، نڅېدل او ټوپونه یې وهل، مګر ده چي له سهاره په ژړا پیل کـړئ و، لا یې ژړل او هر ګړی چي به یې یو پلار او زوی په خنـدا سـره ولیـدل، د ده تـاثیر بـه ډېرېده …

دا ځکه چي ده په دې نابوده دنیا کښي فقط یوه کلمه خبره غوښته چي څـوك یې ورته وکړي، څو له بده مرغه دا څه چي د ده شاوخواته تېرېدل د یوه د خـولې هـم هغه کلمه د ده په نسبت نوتله …

دا کمه کلمه وه ؟

چي یو سړی راسي د ده پر سر لاس ور تېر کړي او ورته ووایي: "زویه !"

ځکه چي ده پلار نه درلود او نورو، ده ته د زوی په سترګه نه کتل همداسـي تر تېرېدل.

نوا ې د ښه زوی څښتنه !

وېرېږه چي کومه ورځ ستا نازولی زوی هم دې کلمې ته اړ نه سي …

راسه ! تر هغه دمخه پر دې وېر ژړلي یتیم رحم وکړه، او د خپل زوی په څېر یې غېږي ته در نژدې کړه او ورته ووایه : "زویه !"

**ارواښاد استاد عبدالرؤف بېنوا**

## د انار گل

راغلې په نڅا د ژوند ورمې ، خاندي گلونه بيا
ويښ کړه پسرلي، د ناز په خوب بيده ښاخونه بيا
پوري سرې لمبې کړلې په درختو د ، انار گلو
کان د حسن وچاود، را برڅېر سوه سره لالونه بيا
بيا د باغ نسيم د غوټۍ شونډو ته خوله ورورې
ايسته يې له مخه د ښايست کړه نقابونه بيا
مست يې بلبلان کړه، په چيغارو په نارو سوله
نوی کړه شنو جامو ته انارگل سره شرابونه بيا
پورته سوې ورانگې د ارغنداو، د آسمان څنډو ته
گورئ ! دا چې ښکارې د شفق خوني موجونه بيا
باد چې پر راوالوزي، سرې څانگې په ټالونو سي
ته به وا څپې وهي د سرو وينو رودونه بيا

اې د ارغنداو په گلو ډکې د خوښۍ سيمې !
اې په ميوو ښادې، د عشرت او خوشحالۍ سيمې !
کشکې ستا په غېږ کې د امان آرام خوبونه واى
کشکې په لمن کې ستا، د علم څه گلونه واى
کشکې ويني سرې واى ستا د خلکو په دوستۍ سره
کشکې تاوده زړونه واى په تا کې په خپلوئ سره
اې د ارغنداو مسته روان په غورځنگو روده !
وگوره لږ ماته اې د ننگې د اورشو روده !
وبخښه دې قام ته يوه مور "د زرغونې" * په شان
لوی چې "احمدشاه" کړي بيا د پاکې پښتنې په شان
ولړزوی غرونه او رغونه سربازي وکړي
يو کړي پښتانه، د پښتونخوا سرفرازي وکړي

(۴ د ثور ۱۳۵۶ ش)
کندهار _ ارغنداو

* د زرغونې انا زيارت د ارغنداو د رود پر ښي غاړه باندې د کوهک په کلي کي دی